# نه ، ته مې هېره نه وي

## شعري ټولګه

# عبدالغفور لېوال

بسم الله الرحمن الرحيم

# كتاب پېژندنه

د كتاب نوم : نه ،ته مې هېره نه وې

ويناوال : عبدالغفور لېوال

د پشتی طرح اوډيزان: محبوب(شريفی)

خپروندوی: ميوند خپرندويه ټولنه كابل

ټيلفون: ۰۷۰۲۹۵۲۱۴

كمپوز اوډيزاين: ذبيح الله( رامين)

چاپ كال:۱۳۸۴

چاپځای: ميوند مطبعه

د انټيرنيټ په مخ ترتيب او ډيزاين كوونكې : مړوند

# جادوګرې ته سرود

جادوګرې څه دې وکړá
چې دې داسې لیونی کړم
دا په سترګو کې دې څه وو
چې له ځانه دې پردی کړم

جادوګرې څه دې وکړá
چې د چین ماچین پاچا شوم
ښاپیرۍ مې شوې کنیزې
چې ستا سترګو ته ګدا شوم

جادوګرې څه دې وکړá
کفرو دین دې له ما واخیست
ماخودبین چې په کې ځان کوت
هانګین دې له ما واخیست

څه منتر دې په ما وکړ
چې کتاب نه مې زړه تور شو
ستاد مینې ستورې شمارم
بل حساب نه مې زړه تور شو

څه منتر دې په ما وکړ
تاته دومره در نږدې شوم
ستا په روح کې مې ځان ولید
ستا د نور ذرې ذرې شوم

جادوګرې ستا د سترګو
له پیریانو مې توبه ده
بسم الله د سپینو زرو
مې په غاړه کې پرته ده

جادوګرې څومره ښه یې
په سندرو دې بلد کړم
لکه شین طوطي غږیږم
په شکرو دې بلد کړم

جادو ګرې څومره ښه یې
تا له مینې نه خبر کړم
زه ساده د غرو سړی وم
تا په سمولارو سر کړم

ته پوهیږې جادوګرې
چې ته څومره ښایسته یې
له غزلو نه رنګینه
له سندرو نه پسته یې

ته پوهیږې جادوګرې
نور له ژونده جدا کیږم
له دې وروسته ستوري شماره
په آسمان کې پیدا کیږم

جادوګرې لاس دې را کړه
چې له دې جهانه ولاړ شو
له شکمنو سترګو پټ شو
د ګومان دنیا نه ولاړ شو

جادو ګرې لاس دې را کړه
چې د ستورو مېلمانه شو
له هغه ځایه چې راغلو
هلته بېرته ور ستانه شو

جادو ګرې لاس دې را کړه
زما له ژونده زړګی تور دی
یو آرام ځای ته مې بوځه
دې دنیا کې څومره شور دی

جادو ګرې لاس دې را کړه
زما ژوند دی ستا په لاس کې
لکه شین غمی د ګوتې
دا سې بند دی ستا په لاس کې

جادوګرې لاس دی ښکلی
د تک سپین سوسن په شانې
رغوی راکړه چې یې ښکل کړم
دخواږه وطن په شانې

جادوګرې جادو و کړه
دا ژوندون را څخه واخله
یا خو اور په دنیا بل کړه
خپل بیلتون را څخه واخله

جادو ګرې جادو وکړه
مادې غیږې ته میلمه کړه
د ژوندون ورکه مانامې
بیرته روح را ستنه کړه

جادوګرې زړه مې واخله
په بدáکې ښکلا را کړه
ها چې زه ورپسې ګرځم
هغه ورکه مانا را کړه

جادو ګرې څومره ښه یې
لاس دې زما په سترګو کیښود
اوس جنت په سترګو وینم
دوزخې جهان مې پریښود

وږی- ۲- ۱۳۸۲

# دشها د ت کلیمه

ته مې یادېږې خو در تللی نه شم
ژوند مې په هر ګام کې اغزي کرلي
پوهېږې؟
ژوند نه مې زړه دومره توردی
لکه دا ستا له تورو سترګو څخه
چې په رنجو ککړه او ښکه راشي
او ستا د تور کمیس ګریوان کې چیرې ځان پټ کړي
پوهېږې؟
ژوند ستا د بیلتون له غم نه لوی پیتی دی
خو تر هغو به یې پر سر ګرځوم
چې یوه ورځ یې ستا په مخ کې کوز کړم
مامې د مرګ وروستۍ سلګۍ یوازې تا ته پرېښي
پرېږده ! د ژوند وروستۍ شیبه ښکلې شي
پرېږده، چې ستا په مخ کې
د شهادت دا کلیمه درسته کړم
خدای خو شاهد دی چې پر ما ګرانه یې.

# غم

ستارترنګیږی
ته مې مخ ته ناسته
خوزه له تا خپه یم
نغمه زما په زړه چړې را منډي
تابې وفا را ته بیګاه څه وویل؟؟
هیڅ مې له زړه نه وځي
او د ستار نغمه مې زړه کې
غم په شور راولي

# يو شيبه مينه

ستنه شوې ودې خندá
سردې زما پر ټټر کېښنود
زما دزړه درزادې وا وريدله
اې!
دې ماشوم بيا درته غوږ کې څه ويل؟
زه خو دده خبرې نه منمه
دی چې له ما خپه شي
په پټه، ټولې ګيلې تاته کوي
پام کوه!
داليونی هرڅه وايي
ګوره خپه چې نه شې.
ستنه شوې ودې خندá
زما تاوده نفس
دا ستا پر ښکلي وچويلی را پروت وربل دانه وانه کړ
ستا د بدن عطرو مې ذهن ته جنت وښوده
مګر رښتيا ووايه!
چې زما د مټو منځ کې
ولې د پانې په څېر وريږدېدې؟
ستنه شوې ودې خندá
چوپتيا خوره وه
او ما وتا دخپلې مينې لاره ونيوله

دواړه سوچونو کې ډوب
خدای خبر څومره ډېر مزáمووکړ
چې ستا د ښکلي غړ خوږې زمزمې
د سکوت سپینه آیینه ماته کړه
پوه شوم ګیله دې وکړه ودې ویل:
چې ستا د ګوتو د شوخۍ له لاسه
زما غوږ والۍ خدای خبر چېرې رانه ولویدله
وګوره غوږ مې تش دی
زه بې ځوابه هک حیران پاتې شوم
خدایزده زما سترګو کې دې څه ولوستل
چې را ستنه شوې راته ودې خندá

# غزل

یــوڅـوک دې پــه ســنـدرو او پــه ویــر یـــادوي
مــریــد دی پــه حـلـقــه کې نـوم د پـیـریـاد وي

د زلــفو پــه تــړلــو مــوڅــوک کـــــله نـــازوي
زمـــوږد جـنـــون نـــښـې پـــه زنـــځـیــر یـــاد وي

زمـــا د لـــمـــدو ســـترګـــو مــاتـې ماتې آیـیــنې
دویـــنـــو، اوښـــکو مـنـځ کـې ستا تصویر یادوي

چې زړونــه رانه یوسي خپل ښایست ته شي مغرورې
چـې زړونــه مــو رامـــات کــړي نــوتــقـدیر یادوي

د یـــارد نـــامه تـــوري مــې ســلګــیوکـې ماتـیـږي
دا څــوک پــه دې دنــیا کــې مــافــقـیــر یـادوي

لیندی۱۳۸۲

# ستړی یمه ستړی

عشقه ناوخته راغلې
نړۍ د زړو دسکو په ټولو لو بوخته
ستا ملنګۍ ته د چاپام نه شته
په چا به رحم وکړې؟
دلته چې مینې ته ګناه وايولا
ته به دې اسپه چېرې ودروې؟
عشقه ناوخته راغلې
غر بنياد مونه ډک
سيند بنياد مونه ډک
چېرې خالي د جنون دښته نه شته
نو وايه عشقه ستا شليدلی ګريوان
خپل ببر سر
او زما دمينې اوښکې چېرې يوسم؟
عشقه نا وخته راغلې
زه نور زلمی نه يم چې مينه وکړم
لکه آدم د خپل هابيل او قابيل
د شخړو سيل کوم
عشقه نا وخته راغلې
د بې مهريو د ساده نسل له لاسه ژاړم
څوک مينه نه پېژني
خو په مينو پورې دومره خاندي
چې کله کله ور نه ځان هم هېرشي.
نو عشقه داسې حاá کې
وايه چې تاڅنګه کړم
خپلې محبوبې ته مې څه ووايم؟
او له ژوندون څخه دا ستړی بدن چېرې خښ کړم؟

# ګران وحيد عمر ته

زما اتڼ چي جانانه
زما اتڼ چي جانانه!
کله چې ځې يو ځل خو شاته ګوره
ښايي کوم څوک دې هر قدم سره د اوښکو څاڅکي و بهوي
زما اتڼ چي جانانه
ته چې د ډو á له هريو ګړز سره لاسونه تاو کړې
زما په زړه کې پښتنه وينه غور ځنګ وکړي
ته چې څپليو نه خرپا پورته کړې
زما په سرکې د ځوانۍ ولولې شرنګ وکړي
د اتڼ چيانو شاز لميه ميره!
هره شيبه مې ستا خندا يادېږي
چې مرور شې بيرته وګرځېږي
زما دې هغه ښکلې ادا يادېږي
زما اتڼ چې جانانه!
کله چې ځې يو ځل خوشاته ګوره
ښايي يو ورځ دې دا شاعر ملګرى
په زړه درو وريږي
ښايي يو ورځ د دې شاعر ملګري غږ وا ورې چې:
((يو ځلې بيا په دې لار راشه
په پخوانو پلونو دې پريو تل ګر ونه.))

# بدمرغي

پام کوه ونه ژاړې
اوښکې دې مه بهوه
اوښکې دې پټې خپلو سترګو کې خوندي وساته
دلته ژړا ته هم ګناه وايي او شک پرې کوي
که درنجو لیکې دې راغلې په سپین مخ
نو تهá به وپوهیږې
چې تا د مینې په خاطر ژړلي
پام کوه ونه ژاړې
موږ دنړۍ له بد مرغانو څخه هغه دوه یو
چې آن ژړلی نه شو
پوهیږې!
هغه ورځ چې تا وژړá
زه څومره وسوځیدم؟
ځکه چې ټوله دنیا وپوهیده
چې موږه دواړه سره مینه لرو.
له دې نه لویه بد مرغي چېرې ده؟
چې ژړا جرم وي
او مینه وي د ټولو ګناهونو ابې
له دې نه لویه بد مرغي چېرې ده؟
چې څوک د خپلې معشوقې په اوښکو
وشرمیږي
او خپلې اوښکې د خپل زړه په وینو و مینځې
له ویرې څخه؟

۵ مرغو می ۱۳۸۲

# زه مساپریم خو غریبه ته یې

((خپلې ګیلې به دیوالو ته وکړم
ځکه چې ته خو ورته غوږ نه نیسې ....))
آه یاره دادې لیک کې څه لیکلي؟
مساپر زه یم خو غریبه ته شوې
بیګاه مې ستا د ناچارۍ ګیلې ته ډیر وژړل
له اوو سیندونو او اووغرونو لرې
زما د زړه په هر یو غږ کې ته یې
ستا چې په زړه کې ګیله وګرځیږي
زه یې همدلته اورم
ګرانې زه اوس هم ستا په زړه کې اوسم
او هر نفس سره دې ساه و باسم
خپلې ګیلې دې خپل زړګي ته کوه
پوهیږې؟
دلته هم آسمان شین دی
او د لمرښکلې طلایي بګۍ دورځې پرلارځي او راځي
مګر پر زمکه نه اشنا سیورې شته
نه تورې زلفې نه لونګۍ نه څادر
نه د زړو څپلیو خرپ نه د ټیکریو ورمې
نه ستا د ښکلي رغوي عطر چې زما ډیر خوښېده
زما اوره تشه ده
ستا تورې زلفې پرې خورې ورې څپې نه وهي
زما غاړه ستا د نفسونو له ګرمۍ نه لیرې

او وچې شونډې مې موسکانه لري
نه کابل جان شته نه يې د ننګ اسمايي
نه يې ځيږه هوا چې ستا د غيږې عطر لري
دلته د هسکو ښيښه يي ماڼيو جسم کې
اروا وې نشته
زه مسافريم او غريبه ته يې
خو اشنا زه در څخه ليرې نه يم
زه خو اوس هم لاستا په زړه کې اوسم
له ديوالونو سره مه غږيږه
خپلې ګيلې دې په خپل زړه کې ها شاعر ته وکړه
چې که دنيا څخه هم ولاړشی
ستا له زړه نه، نه ځي.

۱۲-۲-۲۰۰۴
دټوسن ښار اريزونا

# د هستۍ الفبې

هو !
زه پوهېږم چې یادېږمه دې
راته لیکلي دې دي:
چې د شعرونو کتابونه مې په اوښکو مینځې
زما د زړه دوینو کرښې دې په اوښکو لمد وې، وچوې
او زما یادونه دې د زړه شپو کې څراغ بلوي
هو ! زه پوهېږم چې یادېږمه دې
زه ستا په پاکه او سپېڅلې مینه ښه پوهېږم
خو راشه ما وګوره !
چې ستا تصویر ته په لمدو سترګو خبرې کوم
زه دلته ټولو ته بې سده لیونی ښکارېږم
نور د ځوانۍ خوبونه وینې، خپلو سترګو ته او بهورکوي
د سپینو نجونو د بدن په لیدو آه وباسي.
خو زه د خپلې کوټې ور وتړم
او په شیبو شیبو له ځان سره یوازې او سم
ستا تصویرونه او لیکونه ګورم
یوازې ستا دلیک خبرونه شعرونه لیکم
اوس خو زه نه
زما شاعره ته یې
ته زما زړ کې ناسته

زماله خولې څخه شعرونه وایې
اوس چې ته نه یې زه شاعر هم نه یم
نو اوس منې چې زه په تا ژوندی یم؟
نو اوس منې چې د هستۍ الف و بې
ستا د نامه له یو الف څخه پیلیږي او په بل ختمیږي؟

۱۷-۲-۲۰۰۴

توسن- اریزونا

# غزل

بیګاه دوه پرښتې وې مقررې دلته راغلې
د استا له ښکلو سترګو نه کوترې دلته راغلې

قسم جانانه ټوله ورځ مې زړه کې ګرځیدلې
چې نیمه شپه دې وکړلې وزرې دلته راغلې

په شنو سترګو یې ستا د تورو سترګو غلا کوله
یو دوه د پرنګیو جادو ګرې دلته راغلې

د عشق له پیغمبر سره د سرو کفارو جنګ و
بیګاه د ملایکو څو لښکرې دلته راغلې

سلګۍ سلګۍ اسرې لکه افغانې مهاجرې
د استا د سترګو جنګ نه مرورې دلته راغلې

پرون دې دلبوا á د غزلونو کتاب لوستی
خبرې دې خوږې لکه سندرې دلته راغلې

۱۷مارچ۲۰۰۴توسن اریزونا

# غزل

شب پرست یم خپل یزدان سره مې شپه ده
ستا له زلفو او باران سره مې شپه ده

مجلسی یاران مې ستوري او سپوږمۍ دي
مسافر یم شنه آسمان سره مې شپه ده

ستا د سترګو څه نیکمرغه اسارت دی
چې له تیرا وله کمان سره مې شپه ده

له ګونګرو یې د لنډ یو شرنګا اورم
ستا له ټیک او له پیزوان سره مې شپه ده

چې ویده شمه بس جنګ په خوب کې وینم
ستا د حسن له افغان سره مې شپه ده

۱۹ اپریل ۲۰۰۴ تهوسن

# وعده

نه!

تـه مې هېره نه وې

تـه مې پـه یاد وې، ستا وعده مې هم پـه زړه باندې وه

زما یا دو نه لا، لـه تا سره وو

خوخدای(ج) خبر چې ولې در نه غلم؟

باران پـه شړک وریده

ما د باران د ټولو څاڅکو پـه شمېر تـه یاده کړې

تا راتـه ویلي وو چې زه بـه ځان پـه واینو لوند کړم

کله چې تـه راځې نو زه بـه پـه شرابو کې لمده خیشته یم

هو! دا مې هرڅه یاد وو

ستا د وعدې هره شیبه مې پـه خاطر کې شنه وه

زه پوهېدم هغه ډیوې چې بلې کړې وې تا

اوس خلاصیدې او وار پـه وار مړې کیدې

خو خدای(ج) خبر چې ولې درنه غلم

تـه مې پـه یاد وې، تـه مې نه وې هیره

او پـه سرو واینو کې لوند خیشت بدن دې

زما سترګو تـه نیغ ولاړو

زه پوهېدم چې تـه بـه راشې

زما د خوني وربه وټکوې

زه پوهېدم چې لـه ژړانه بـه دې سرې سترګې را واړوې

ګیله بـه وکړې:

چې شراب خلاص شوá، ډیوې مړې شوې

ولې را نه غلې ته؟
زه پوهېدم چې زه به چوپ ولاړیم
ځکه زه نه پوهېږم
چې ولې درنه غلم
زما په لاس کې به یو سپین کاغذ وي
ما غوښتل شعر ولیکم
نه شعرمې نه لیکه همداسې ناست وم
یوازې سپینه پاڼه
زه پوهیدم چې ته به پاڼه زما له لاسه واخلې
په دې ګومان چې ما به نوي څه لیکلي وي پرې
خو پاڼه سپینه ده یوازې یې په سرکې دي یوڅو توري:
(غواړم وطن ته ولاړشم.)

۱-مې- ۲۰۰۴ ټوسن- امریکا

# یا هو

بیګاه دلته راغلې وه ډیوې سره نجلۍ
آسمان نه پریوتلې وه ډیوې سره نجلۍ

د سپین کمیس ګلان یې د مظلومو وینو څاڅکي
ملنګه وه، سپیڅلې وه ډیوې سره نجلۍ

په کلي کې نن باد د اسرافیل شپیلۍ وهله
بیګاه کوم چا ویشتلې وه ډیوې سره نجلۍ

یو روڼ ستوری را پریوت، خلکو ولیده له ورایه
همدغلته لویدلې وه ډیوې سره نجلۍ

د کلي ملایانو ترسبا هو، الاهو کړ
د قدر شپه بللې وه ډیوې سره نجلۍ

یو څولیوني ولاړو چې د زړونو نذرو رکړو
ارمان چې نوره تللې وه ډیوې سره نجلۍ

۴ مې ۲۰۰۴ توسن اریزونا

# يوازې

هره شيبه د ژوند څپره بدليږي
هره شيبه د مرګ په لوري يو بل ګام اخلم
لکه د مني پاڼه رېږدمه او ليږدمه د ځمې په لور
او باد د عمر سپينه واوره زما پرسررا شيندي
يوازيتوب
يوازيتوب مې خوښ دی
چې په لمده کبله، بربنډې پښې
يو څوګامونه واخلم
او هر څه هېر کړم دا بد لپاره
مامې له ژوند څخه يوازې بد بيني زده کړې
هرڅوک يو څوک دی ځانته
هغه چې زما په شانې نه دی هغه زه نه يمه
هرڅوک چې زه نه يم دوزخ دی زما
زه چې يوازې پيدا شوی يم يوازې اوسم
دادی:
د مرګ په خوا يوازې درومم.

۱۱-2004-جون توسن اريزونا

# هو دلته مینه نه شته

دلته هرڅه شته دي خو مینه نه شته
دلته د مور د لاس توده ډوډۍ غلمینه نه شته
دلته رګونو کې شراب ګرځي او زړونه په هوس
دربیږي
دلته زما او ستا په شان وجود کې وینه نه شته
دلته رنګونه دي، غوغا ده او شوخي ډېره ده
دلته سپیڅلې او ساده ښکلا زما د کلي
هغه په سترګو توره او په مخ سپینه نه شته
زه دلته دوی ته خپل هرڅه یادوم
دوی را ته خاندي وایي
هو هلته هرڅه دي او دلته نه شته
وګوره دلته سپینه سوله ده او جنګ هم نه شته
دلته غلا هم نه شته تالان هم نه شته
دلته یوازې وداني شته و رانوá چېرې دي
هو دلته مینه نه شته
خو په لاسو د انسان
د انسان مړینه نه شته

واشنګټن DC 2004/ 29 اګست

# د سپوږمۍ په ارمان

پا يخې مې بډ وهلې
بيل مې په پوله خښ کړ
او د ليښتي رڼو اوبو کې مې لاسونه پريولل
د جوارو لوی پټي ته ځيرشوم چې مې ته وليدې
په شنه ګيډۍ کميس دې سپين ګلا باتون مات کړي
اود پاوليو شرنګهار دې د چنچڼو له نغمو سره ګډ
څومره ښايسته وې بلا
زړه مې له ډېرې خوشالۍ الوځي
سړکاá مې ځمکه له ګروۍ خلاصيږي
او له روژې څخه به مخکې ستا ډولۍ راوړم

* * *

کابل له سپينو واورو لاندې پټ دی
باغ بالا کې سبرونې وچې شوې سړکاá
ستا نفسونه ډېر تاوده ښکاريږي
زما تاوده لاس کې دې سپين لاس خولې دی
بيګاه دې بيا ژړلي؟
په ټيليفون کې دې له غږه پوه شوم
اوس ستا څېره کې د ستړيا نښې له ورايه وينم
اوس زه او ته سره ډېرنه شو ليدای
ژوند زما او ستا ترمنځ ديواá جوړ کړی
ژوند سرګردانه دی د ښار کوڅو کې
ښار لکه تورښامار زموږ مينې ته اور را شيندي

* * *

د خپل کوچني کمپیوټر غږ راویښ کړم
دا د شیطان صندوقچه هره ورځ همدا سې کوي
ستا بریښنا لیک مې ولوست
کړکۍ ته ودریدم
خو ته منې دلته آسمان نه ښکاري
دلته په میاشتو څوک سپوږمۍ نهویني
دلته سپوږمۍ چا ته سلام نه وایي
دلته نیویارک کې یې آسمان غلا کړی
زه سپوږمۍ نه شم لیدای
خو ستا لیکلې ټیکۍ لا هم زما پرشونډو ناڅي
(شین آسمان ذرې ذرې د سرو زرو یې تنابونه
سپوږمۍ د بام په سر په یار وایه سلامونه)

۲۰۰۴ سپتمبر نیویارک

# اروا او ځنګل

ما ځنګل و آزمو یېه
ما له ځنګله سره نفس و یو ست او ځان مې شین کړ
او زما وجود د ځنګله شنه بدن کې و غځېده
ماله ځنګله سره ځو شپې تیرې کړې
او د کوچني سیند له سندرو سره و بهیدم
ماپه ځنګله کې ځان پخپله ورک کړ
ځنګل زموږ په شان دی:
شاړ
مهربانه
او وحشي خوښکلی
ځنګل زموږ په شان نه
زموږ د اروا په شان دی
هلته هم پړانګ او سیږي
او هم د سترګې هوسۍ ښکلي بچي
ځنګل کې مار له ونې ځان راتاو کړي
او د مرغیو ځاله ټوله له بچو تشه کړي
ځنګل زموږه د اروا په شان دی
دلته لیوه او غزاá دواړه اوسي
ځنګل له ځان څخه دویرې په شان
له ګڼو بوټو لاندې تورې بلاګانې او شیشکې ناڅي
شپه په ځنګله کې ستوري یو یو ښکاري
او سپوږمۍ څاڅکی څاڅکی څاڅي
له شنو ګڼو څانګو

دلته د باد نغمه له پاڼو سره لوبې کوي
لکه د دنګې نڅاګرې د پایزیب شرنګهار
خو د ځنګله سهار د ښکلې معشوقې د سپینې غاړې په څېر
همدومره سپین
همدومره روڼ
همدومره پوست دی منې؟
چې کله ویښ شې بیا یې ښکل کړې نو
الله اکبر
یوه نری لار د ځنګله د بوټو منځ کې تللې
د وچو پاڼو پرې غالی خوره ده
دا لار زموږ د ژوند تر پایه اوږده
چېرته یو ورک لاروی نه شته چې سلام دې واخلي
او وچې پاڼې به ما تیرې ستا تر پوندو لاندې
ځنګل زموږ د یارانې په څېر دی
ځنګل زما په څېر یاغي
خو ستا په څېر ښکلی دی
ما ځنګل و آزمو یبه
او ته زما د روح ځنګل ته راغلې
له هم هغه ازله
کله چې ته خپه شې
نو ځنګل اور واخلي اوونې سوځي
کله چې ته وخاندې
پر ځنګله شرکنده باران وریږي

- سپتمبر ۲۰۰۴ مریلند - کوز اډیلفې ځنګل

# غزل

ستايـوې جلـوې تـه لـه ګناه سترې بدن شو اور
وتراشه دا روح مې پریږده خیر دې کـه مې تن شو اور

ځـان نـه یـم راغـلـی او سفر مې تـر خـپل ځـانـه دی
سـتا د مـخ رڼـا تـه ددې لارې لـوغـړن شـو اور

مـړه خـاوره ویـده وه خـو چـې تـاورته تش وکتل
ویښه شوه خوپوه نه شوه چې څنګه پرې وطن شو اور

ګل پـه خـنـد یـدو کـې سـتا د حـسـن نـښـه راوړ لـه
مـاتـه مـې پـه ځـان کـې دغـه خـیـرې پیرهن شو اور

تـانـه یـې رڼـا زده کـړه او مـانـه تـا ویـدá او سـوز
ځـارشـه زمـوږ لـه میني نه چې دومره برخمن شو اور

دومـره مـې دړواخله چې خیرن خلک مې نه ویني
مـاتـه خـو پـه دې دنـیا کـې دغـه شـان بـودن شو اور

۳۰ وږی1383مریلند کالج پارک

علامه رشاد ته چې د بیا لیدو ارمان یې زما پر مسا پر زړګي پاتې شو

# خپل استاد ته !

او ستا دلمر په شان وجود هم پریوت

هېڅ مې باور نه راځي
ها مازیګربه مې همیش په زړه وي
چې پر سبا یې زما سفر پیلېده
زه ستا د کور په لویه خونه کې ناست
او ستا د تود غږ له ورېمو سره جنت ته تلمه
تا راته وویل چې :

پام چې وطن هېر نه کړې
مګر استاده ! ته چې ولاړې
دا وطن او مورېه چاته پرېږدې؟

مګر دا ژوبله او یتیمه پښتو چا ته پرېږدې؟

یوه ورځ تا را ته ویلي وو چې :
(فخر شاګرد هنرمند به استاد رسد )
مګر استاده !
اوس حیران یم چې زمورې فخر به چاته رسي؟

موږه بې فخره شو
بې سره شو
بې لمره شو بس ته چې ولاړې
اې د پښتون مذهب رهبره وایه
زموږ د پوهې پیغمبره وایه
که ستا د تللو نیت و

ولې دې موږ ته دومره مینه راکړه
موږ خو ویده وو دا بد په شپو کې
ولې دې مړو رګو کې وینه راکړه
دا ویښ زلمیان به اوس په کوم لوري ځي ؟
ته خو یې مشر د دستار سړی وې
دا افغانان به اوس په کوم لوري ځي ؟
استاده ! اوس به دا نیمګړې نسخې چا ته لولم
دا - دخوشاá فرهنګ - به څوک ولیکي
دا د - اټک - لانجه به څوک وڅیړي
دستر پښتون نیکه به څوک پېژني
زما د تاریخ دهسک له لمرسره خو ته اشنا وې
خو
ستا دلمر په شان وجود هم پریوت
هېڅ مې باور نه راځي
نه !
زه دا منلی نه شم
لا ډېر څه پاتې دي چې ته یې وکړې
یوازې ته
یوازې ته

يوازې ...

ددسمبر اوله ۲۰۰۴ واشنګټن دي سي

# تصوير

ستا رالېږلی تصوير
هغه په تور ټيکري کې ښکلی تصوير
هو !
همدا اوس هم زما په لاس کې دی او ګورم ورته
ستا ښکلې سترګې خو تصوير کې هم خبرې کوي
ليونۍ !
سترګو کې دې څه پټ کړي؟
چې زما ټوá عمر يې وخوړ
خو تفسير مې نه کړې.

۲۱نومبر ۲۰۰۴ مريلند

# غزل

جـانــانــه د خــوږو ســتــرګــو تــصــويــر ســـره دې ژاړم
د خــوب او خــيــاá لــه تــور او ســپــين تعبير سره دې ژاړم

دا تــاراتــه ويــلــي و چــې بــنــد کــې بــه مــې ســاتـــې
تــه نــه يـــې د يـــادونـــو لـــه زنـــځـيـر ســــره دې ژاړم

ســتا اوښــکه مــې تــاويــزکــړه ګــرځــومــه يې په غاړه
لـــه پـــير ســـره دې ژاړم لــــه فـــقـــيــر ســــره دې ژاړم

بـــس تـــاکـــې چـــې اوســـيـــږم لـــيـــونـــی يــمــه وطـــنــه
خـــنــدا ســـره دې خـــــاندم او لـــه ويـــر ســـره دې ژاړم

بـــرخــلـيـک دې دی چــې خــپــله مــينه خښه کړې په خپله
لــيــوالــه بــد قــســمــتــه لــه تــقــديـــر ســـره دې ژاړم

مريلند - امريکا

# غزل

تو به مې کړې وه چې ماته شــــوه تـــوبه مې وکړه
شيخ او ساقي سره همدومـــــره ګـــوزاره مې وکړه

ته به مې خوب غوندې په ياد کې ساتې ښکلې ياره
يو مساپر وم، دلتـــــــه راغـــــلم يوه شپه مې وکړه

افغانستان غوندې زخمي زړګی مــــې راوړ درته
جا نانه راشه، شونډې راوړه څه چاره مـــــې وکړه

دې ته دې هم لويه ګناه وويــــل زمـــا قــاتــله
چې ځنکدن کې دوطن خواته سجده مــــې وکـړه

زه ستړی نه وم خو پښتو مې مخ ته ودريـــــــده
توره مې ماته کړه دښمن سره جرګه مې وکــــــړه

لينډۍ۲۵- ۱۳۸۳ واشنګټن

# زلزله

دهند په سمندرکې دڅونامي زلزلې ۱۵۵ زره کسان ووژځ

او زمکه ریږدي
څپې الوځي
دخلکو لو دی
لکه قیامت، موراو زوی نه پیژني
دخدای (ج ) پر زمکه څه بلا پریوتې
چې خلک یو دبل دغوښو بوی نه پوزې نیسي
طبیعت په لوبه بوخت دی
خلکو کبان نیوځ خو نه وو خبر
چې دطبیعت په یوه لوبه کې به
کبان په دوی ماړه شي
کله چې زمکه دالله (ج ) دبندګانو تر پښو لاندې راوڅرخېده
لویانو چیغې کړې:
یارب
یا بګوان
یا عیسی ....بودا .... موسی راورسیږئ ...
خوماشومان او لیوني پوه نه شوځ
چې چا ته پاس وګوري
دوی ډېر نېکمرغه وو چې نه پوهېدځ
ځکه اوځ یې زلزلې ته کټ کټ وخندځ او وروسته مړه شوځ

اسمان لا شین و
چا څه ونه ویل
دڅپو غږ کې چیغې ډوبې شوې

خنداوې پراوبولاهوشوې.
ښځې تر اوسه لا څپو ته ګوري
خو شپه تیاره وې داوبو پر سر دهېڅ ماهیګیر
دکوچنۍ بېړۍ څراغ نه ښکاري
په جوماتونو کې اذان
په مندرونو کې زنګونه نشته
دکلیساوو صلیبونه مات دي
خلک دلویو پانګه والو دخیرات په ډوډۍ
یو بل له ستوني نیسي
او ماشومان
لاهم په ختېو کې دمړو میندو له تیو څخه وینې روي

* * *

پر زمکه خلک ډیر دي
څوک یې په جنګ څوک یې په اور کې سوځي
څوک زلزله کې تر اوبو او خاورو لا ندې ورک شي
او یو ځل بیا بشر په دې پوهېږي
چې مرګ دکونډو یتیمانو غم وي
نه دهغو چې مړه شوá
دمرګ غمیزه لا ژوندۍ ده
دهندي او بنګالي ښځو له اوښکو سره لوبې کوي

خو ها چې مړه شوá په دې نه پوهیږي.

* * *

یو لیونی د ونې ښاخ کې ناست و
ونه ولاړه وه د ختیځ منځ کې
او لیونی لکه مرغه په کې ژوندی پاتې و
لیوني وژړá او ویې خندá
او بیا یې داسې وویل:
په دې دنیا کې به لا اوس هم چېرته جنګ روان وي
او ځیني خلک به د ځینو خلکو وینې غواړي
دا دی طبیعت ورسره مرسته وکړه
طبیعت ډېر ووژá
نو اوس کېدای شي
جګړه ماران ماړه وي
او جګړه ودریږي ....
لیوني وژړá او ویې خندá
ونه ولا ړه وه
او دی لکه مرغه په کې ژوندی پا تې و.

۲۰۰۵ جنوري
اندیانا-متحده ایالات

# بنده

شیخ وايي ښه کوه او بد مه کوه

خو شیطان دانه مني وايي:

بد کوه او ښه مه کوه

ماته خو د واړه په غلطه ښکاري

آيا دنيا کې بس همدغه ښه او بد دي

بل څه نشته مگر؟

زه نه د شیخ نه د شیطان منمه

د خدای بنده یم بس د خدای منم

او مینه کوم

جنوری ۲- ۲۰۰۵
اندیانا- متحده ایالات

# نه پوهېږم

دنيا يو بل توپان په سر اخيستې

بيا د ديوانو په سرونو کې چينجي ښوريږي

او بشريت په خپله سپينه تنده لاهم د جګړې داغ لري

د انسانيت د پيدا ايښت له ورځې

زموږ تاريخ د د وو سترو ګناهونو په دوزخ کې سوځي

يو (غلامي) او بل (جګړه) او وژá

خداى ج د انسان د بد مرغيو طوق د دغو شيطانانو

په لاسو کې ايښى

د غلامۍ شيطان د عدá بوړبو کۍ کې مړشو

خو (جګړه)

آخ خداى ج دې پرې مور بوره کړي

لاهم د ستر بابا آدم د اولادې شرم دى

دنيا يو بل توپان په سر اخيستې

قيامت به راشي خو حيران يم چې زموږ غاړې به

د جګړه مارو تر ګناه لاندې کږې تر خدايه څنګه ورشي؟!!

مريلند - امريکا

# غزل

جانانه ثوک چېرې هم داسې نــــاروانــه کــوي
چې زړه کې ناست وي خو پروا د زړه وا لانه کــوي

دومره ډېر فرق دی ستا د سترګوا و د خلکو تــــرمنځ
خبرې تهوá کوي خو هيڅ ثوک يې ادا نــــه کــــوي

چې ته را ونه ګورې روح به مې ځــــــان ثه ووينې
چې تصوير نه وی آيــــينه چـــا تــــه خندا نه کوي

اخر په زموږ زړونه د خدای (ج) حسن په خوب و وينې
دغه ميــــن مــــاشو مـــان هيڅکله ګناه نه کوي

وايي مــــرګ سخت دی روح له تنه جدا کيږي مګر
ما د وطن بـــيلــــتون ليدلی هيڅ پروانه کوي

۲۸ - وری ۱۳۸۴ واشنګټن دی سی امریکه

# تصويرونه

که

هندارو تصويرونه ساتلای

مور به خپل اوومنيکه هم لېدلی وای

او اوس به تېوá پوهېدو

چی د دارا او سکندر آيينې څه ډوá وې

او د جمشيد په جام کې څه ښکارېدá

يوازې

که هندارو تصويرونه ساتلای

نور به بې روحه تاريخ

داسې بې ژبې او مړژواندی نه وای

مور به آدم ته د حوا لومړی موسکا پېژنده

او په ببړۍ کې به له نوح سره يوځای ګرځېدو

ما به آتن کی له سوکرات څخه پوښتلي وای چې

تر تا دوه نيم زره کلونه وروسته

ولې لا هم په- عدالت- پسی دا ورک بشر همداسې ورک دی؟

اوله موسی نه به مې غوښتي وای چې
ما هم له ځانه سره طور ته بوځي
بس که یوازې
تصویرونه په هندارو کې خوندي پاتې وای
مور به لیلا ته وای کتلي د مجنون په سترګو
او په کعبه کې به مو
د اسماعیل د قربانۍ ننښې له ورایه لیدې
زه به ورتلم اکاډیموس ته چې په خپله ژبه
له اپلاتون سره خبرې وکړم
زماله هغه سره حساب پاتې دی:
ستا - ایتوپیا - چېرې ده؟
او انسانان به وژá کیږي لا تر کله دهغې لپاره؟
ستا د خیالي ډیموکراسي ریښتیاده چېری پته؟
مور خویې اوس هم
د دروغو د لمبو تر شاتور سیوري وینو
له ارستو سره مې نه ده جوړه
ځکه چې لا هم داخلاقو او ایمان په توپیر نه پوهیږي

خو

که هندارو تصویرونه ساتلای

ما به له خپل نیکه نه غوښتي وو چې

زما مغرور پلار ته وصیت ولیکي:

چې خپل شاعر زوی د ژوندون په لومړۍ ورځ ووژني

بودا لا اوس هم ما په خوب کې ویني

هو ! زه پوهیږم چې له ما خپه دی

ځکه زه ژوند ته د هغه په سترګو نه ګورمه

ژوند کله ښکلی شي زما د معشوقې د ښکلو سترګو په څیر

خو بیا هم ما ته هیڅ ارزښت نه لري

بودا ویریږي چې خوبونه یې زما له وینو رنګ وانه خلي

بودا به نه ویریدای

او زه به هم ژوندی وای

خو که هندارو کې تصویر پاتې وای

راشه چې زه در ته یو راز ووایم

له سلوزرو کلو ډېر تیر یږي

هیڅ څوک پرې نه پوهیږي

چې له هندارو څخه ولې تصویرونه تښتي؟

ماته مې اوومنیکه کیسه وکړله:

چې په هنداره کې شیطان وکتل

او بس همدغه شر میدلې دهنداري حافظه ماته کړه

که درته وو ایم خندا به در شي

که تصویرونه په هندارو کې خوندي پاتې وای

مور به ځانونه دبیزو له نسله نه ګڼلای

۱۳۸۳لړم۲۷

په دې شعر کې وزن څو ځایه توپیر لري، خو دا د مانیزو برخو دبیلولو لپاره دیوه نوي میتود کا رونه ده، نه وزني تېروتنه.

# د افغانستا ن ورکې خزانې

ددوه زره پینځم کاá د اپریل په یوویشتم ما ښام د امریکې په پلا زمینه واشنګتن ښار کې د افغانی سفارت او نشنل جیوګرافیک سنټر په مټ د افغان لرغونپوه ښاغلي زمریالي طرزي د هڅو او په ټولیزه توګه د فغانستان د لرغونو آثارو په هکله د یوه فلم پرانیستنه وشوه، چې((د افغانستان ورکې خزانې)) نومیږي په دې فلم کې د بامیان د سترو بودا ګانو را پرځېدá و ښووá شوá خو تر ځنګه یې په سیمه کې ددرییم بودا چې په (ویده بودا) مشهور دی، د موندلو لپاره د ښاغلي طرزي هڅې او بریالیتوبونه هم د پام وړ وو. د فلم جوړونکي باور لري چې دا په نړۍ کې تر ټولو ستره مجسمه ده چې اوږدوالی یې د ایفل تر برجه هم ډیر دی. ښاغلي طرزي وویل، له ډیرو څېړنو او کیندنو وروسته مود دغه بودا د پښنو یوه برخه وموندله، خو کله چې ډاډه شوم هغه دلته دی، نو کاریګروته مې وویل چې بیرته خاورې پرې وروا ړوي، چې بیا بل وخت په ډاډ او احتیاط سره کیندنې پرې وشي. د فلم بله په زړه پورې برخه د طلا تپې دقیمتي خزانې په هلکه وه چې له نیکه مرغه تر اوسه دولسمشرۍ په ماڼۍ کې خوندي ده. دویده بودا را برسیره کېدá په نړیواله سطح یوه ستره فرهنګی پېښه ده، وړاندوینه کیږي چې ددغه بودا تاریخي ابهت او اهمیت به د مصر له اهرامونو سره برابر وي، یاد شوي فلم عاطفي جوړښت درلوده چې د لیدو پرمهاá یې پرځینو افغانانو بر سیره بهرنیانو هم خپلې اوښکې تم نه شوې کړای. ماله خپلو اوښکو سره څو کلیمې هم مل کړې چې دلته یې لولۍ:

# ورکه خزانه

بودا !
ویده شه
د تاریخ ترخړ وارونو خاورو لاندې آرام و غځېږه
لا ((اپه ګان)) د خپل نیکه څېره د غم د غبار شاته وینې
لا شغهار د غشیو خیژی لا ګوربت زخمي دی
او د ((لوی غر)) د ذهن ځالې له لمبو ډکې دي
لا پښتین نه شي او ریدلای ستا د سترې ډ برینی سینې ورک درزونه
لا تور شیطان د ((براهې)) ګردونه مینځي د ((سیندو)) پر اوبو
لا هم پر موږه لمر د تور د جاá له کوره خیژي
لا ستا د دوا ړو تند یسونو له سوغا ړو نه دودونه خیژي
بودا !
ویده شه
په آرام پریوځه
هو دا ریښتیا ده چې
بخدي کې یې د ((ساک)) د پا چا ښکلې لور بربنډه کړله
طلا غونډی، کی یې د سرو زرو له تاج څخه هډو کي تش کړá
خو ته ویده شه
ته آرام پریوځه!
د بخدینی، شهزادګی، روح لا له ګانو سره په کور پاتې دی
لا له سیندو یا له آمو څخه او ښتی نه دی
لا خو د ساک د لور د ګڼ کمیس پا ولي شرنګیږي
او لا د ستر نورستان ((لام)) په ((الینو)) مین دی

لاهم د دنګو پکتانیو د قمې زرین لاسوندي بریښې
نو ته ویده شه، ته آرام پریوځه!
د بخدینۍ پیغلې ښایست ته مې سلام دی بودا
ستا د خوبونو پریشانۍ ته مې هم پام دی بودا
زه لا د زرو کلو شاته بخدینۍ وینمه
چې اووه کنیزې پرې چاپیرې دي سینګار یې کوي
څوک یې باولۍ، څوک یې والۍ څوک یې پېزوان سموي
څوک یې په هسکه سینه ږدي د ((سات دیوا)) زرځېره
بودا ښایست ته یې حیران یم خو ویرېږمه پرې
چې څوک یې نن را نه هډونه له سیندو تیر نه کړي
یا خویې غله د لاجورد و له آمو تیرنه کړي
زه هم پوهیږم زړه مې ریږدي خو ویده شه بودا
ته د تاریخ تر خوارونو خاورو لاندې پټ شه
چې زه د خپلې بخدینۍ ښکلې ګاڼې و ساتم
بودا ویده شه
ته خوښه خبر یې
چې ستا د هډ هډ ماتوونکي څوک وو
تا خو د خپلو تندیسو نو پرځېدá ولېدá
چې له((ارک هنډ)) څخه ورها خوابې دیوان نشه کړá
نو ته ویده شه، په آرام پریوځه!
کله چې ما د ارشاک توره بیا په لاس ونیوه
او کانیڅکا مې ببرته راوست د باګرام مانۍ ته
کله چې لمر له پکتیا نا څخه راوخوت او سوریا وخندá
ګندهارا ته چې مرغۍ له پرښا پوره راغلې
چې آسمایي بیا د (ویشنو) د پلاز بیرغ پورته کړ
او روهیلیو د کوترو سپین خیلو نه په هوا پورته کړá

بيا به(ارجن) له بهار ته راشي
(کليو پاترا ) به د نيل غاړې څخه راوړي زر مصري آسونه
(آشيل) به راشي د (زيیوس) پيغام به راوړي طلايي بګۍ کې
او سکندر به خپل زرين تاج ستا پښو ته کيږدي
زرتشت به راوړي د بخدي پيغلې ولور کې د کوبا ارغوان
او د روم پيغلې به ګاڅونو ته نڅيږي له لنډيو سره
اراکوزي زلمي به اچوي د څښو څپې مست اتڼ ته
او هيندوکی ـ راښی ـ به ناڅي د خيبر اتڼ ته
سمر قندي کوڅی ـ به څرخي کاکړۍ غاړو ته
او هيندو کڅ به له پامير سره پيالې کړنګوي
بيا به نو تا را ويښوو له اوږده خوبه بودا
بيا به دې باسو دتيارو له تور آشوبه بودا.

د دوه زره پينځم کاá د اپريل يوويشتمه
واشنګتن ښار ـ امريکا

# اپه ګان: د افغان لرغوني بڼه

اپه ګان: د افغان لرغوني بڼه
ګوربت: په میدان وردګ کې دیوه غره لرغونی نوم دی
لوی غر: د لوګر لرغونی نوم
سیندو: ننني اباسیند ، یونانیانو اندوس باله
بخدي: د بلخ زوړ نوم
ساک: ساکیان د افغانانو هغه لرغونی پښت و ، چې سلګونه کاله یې پر هېواد واکمني درلوده.
طلا غونډۍ: طلا تپه چې زرګونه لرغوني زرین آثار ورڅخه موندá شوي.
بخدینۍ: بلخي شهزادګۍ
لام: د نورستان په افسانو کې هغه پهلوان دی چې په
شهزادګۍ الینو مین و.
الینو( الینا): د نورستاني افسانو اتله، د لام معشوقه او د افسانوي ښکلا خاونده، د الینګار( الینګهر) اوسنی نوم هم له همدې څخه اخیستل شوی او مانا یې د الینا مېنه یا کور دی
سات دیوا: دیوا په سانسکریت کې ځواکمن واکمن ته وایي چې د اوستا یي دورې ارباب الانواع به یې په دې القابونومل، سات دیواد ساتونکي ځواکمن په مانا ده، چې زرینې مجسمې به یې د شاهي کورنۍ له مړیو سره خښولې چې ګواکې د هغو ساتنه وکړي.
ارک هنډ: د اټک زوړ نوم.
ارشاک: آریایي اتل
کانیځکا: کانیشکا نامتو افغاني واکمن
کوبا: د کابل زوړ نوم
پرښا پوره: د پېښور زوړ نوم

آسمايي: په کابل کې ددغه غره نوم له دوو ريښو (آسه) ياني نيکمرغي او(مايي) ياني مورڅخه جوړ شوی چې مانا يې د نيکمرغي مورده.
ويشنو: له هندي ارباب الانواعو څخه
ارجن: هندي اتل، د مهابهارت په اتم پرب(فصل) کې يې له خپل تربور کرن سره د جګړو کيسه راغلې.
کليو پاترا: نامتو مصرۍ ملکه (شاه مېرمن)
زييوس: د يوناني اساطيرو نامتو څېره
ګاڅونه: ګاتهونه يا ګيتهونه زاړه آريايي سرودونه چې د هېواد د لرغوني فرهنګ وياړمنه برخه ده.
اراکوزې(اوسنی کند هار) پکتيانا(اوسنۍ پکتيا) ګندهارا(اوسنی ننګرهار): دلرغوني افغاني مدنيت درې مهم منځي
(مرکزونه).
هيندوکښ: هيندوکښ اوسنی هندوکش.

# مکتبی

د بر کلي صایب زاده یم

یو مې آس یوه شړۍ
قصیده مې پخه کړې
ګرځومه کوزړۍ
ځوان مرید دځرخي پیر یم
رنګ دې ورک شي کوډې نه کړم
کوډې باسم
بند بختونه خلا صومه
دمینو زړو ریبار یم
شکرانه مې یا ممیز دي یا توتان دي یا مرۍ
څوک د سماá راته خامک کړي
څوک راجوړه کړي خولۍ

د بر کلي صایب زاده یم

یو مې آس یوه شړۍ

نجونې ګردې رانه تاو وي
تاویزونه رانه غواړي
ملا تل راته په قار وي
سل کوپرونه راته وایي
خو پروا یې ډیره نه کړم

خدایزده ولې
دکوز کلي په زلمیو باندې ګران یم

ما ته راز ددوی مالوم دی
یو دخان په لور مین دی
بل لېدلې دملا صایب لمسی

د بر کلي صایب زاده یم

یو مې آس یوه شړی
د شنډ توت ډډې ته ناست یم
شنډو ښځو ته تاویز کړم
ما شومان له ځېله خلاص شي
ورته دم چې زه ممیز کړم
دبرات دمیاشتې سر دی
نن اوله پنجشنبه ده
یوه پیغله راته ناسته
زښته ډېره ښایسته ده
وایي داسې تاویز راکړه
چې مې پلار لږ بسلمان شي
میرات مړی ولور کم کړي
خورې جانان مې مسا پر دی
په دوبی کې مزدوري کړي
* * *
نیمه شپه چې شي رابره
په سندرو باندې سر شم
ټوá ماران مې په هوده دي

غړوم ورته شپېلۍ

د بر کلي صايب زاده يم

يو مې آس يوه شړۍ
ژرنده ګړی مې ښه يار دی
ډيرې شپې سره يو ځای يو
ظالم ښه مست ربابي دی
دځوانۍ سندرې وايو
شپه چې ښه ډېره پخه شي
بيا نو بله کړو دوهۍ

د بر کلي صايب زاده يم

يو مې آس يوه شړۍ
ژرنده ګړی چې نن راغی
په خندا يې راته وويل:
صايب زاده کيسې ته غوږ شه
نن اوره مې دخان يوورڼá
کور يې ډک له مېلمنو و
څوک له ښاره وو راغلي
په انګړيې شور ماشور وو
يوه ښکلې مېلمنه وه
په ښايست وه ښاپيرۍ
کليوالو غوندې نه وه
ښکاريدله مکتبۍ
شرمېدله پټ يې وويل:
صايب زاده يار ته دې وايه

پیر خانې ته دې سلام دی
یو تا ویز خو راته وکړه
چې جانان ته شم منظوره
شکرانه به پوره درکړم
خدای دې مکړه ادې بوره
مکتبۍ راته داوویل
بیا یې راکړدا کاغذ
ژرنده ګرې توبې وکړې
ویل یې ورانه زمانه شوه
مکتبۍ نه وه بلا وه
په خندا بېرته ستنه شوه
په کاغذ کې وو لیکلي:
((په سندرو یم مینه
دنغمو یم لیونۍ
په یو چا مې زړه بایللی
غږوي ښکلې شپیلۍ
یو تاویز ورباندې وکړه
چې ماګل کړي د پګړۍ

یو یې آس یوه شړۍ))

د برکلي صایب زاده دی

۱۳۸۳\۱۱\۱۴
متحده ایالات- مریلند

# ا فغا نا ن

اوږدې لمنې
ګونځې پایڅې
د پوندو چاودې له پوټیوډ کې
او د څپلیو په میخ ژوبلې تلې
د اوږد تاریخ کوڅو کې ځي او راځي
سبا د لوی او ډبرین دیواá تر شاپټه ده
نن دیوې مړې ډوډۍ لپاره لاس تنا کې
پرون په وینو سره په اوښکو لمده
یو ځل په چپ ولاړá په ښي لاس راغلل
د ښار په لویې څلور لارې کې په چیغو سر شوá
بل ځل له تورو سره را غلل
خپل بچي یې له چپه حلاá کړá
اوږدې چپنې
ګل سیب د سماá تر ملا
قرصې رخچینې پر سر
لینګي د شولو په پټیو کې خوړین
ملا خیشاوه کې کړ و په
یو ځل د بیل لاستی په لاس کې بیا قبضه د ټوپک
یالاس پر ټپ ایښی یاګوته پر ماشه نښتې
یو ځل په ږیره ګنهکار بل ځل د سر په وینښتو
یو ځل ملا پسې ولاړ بل ځل په تیښته ترې خلاص
نیم په تقدیر مین او نیم یې په پیریانو اخته
نیم یې په تمه د جنت او په دنیا باندې یې لاړې تو کړې

څه په ماييو پسې روان
څه يې د ما رکس د کتابونو چينجي
څه د سيد قطب د تاويزونو غاړه کې په غاړه
څه اسامه سره په سوړو کې پټ
څېرې ګريوان
ډډې لمن
وáوá لونګې په غاړه
د ارابو له ربړه جوړې مچنې په پښو
د اوښ وندنى پر اوږه مخ په ختيځ دي روان
باريې اپيم دي يا د بنګو ميده شوې پټې
څه په (پريتي) مين او څه يې د ((تام کروز)) ليوني
نيم يې له ډېره تکبره زړې مور ته انګريزي غړېږي
څه يې لا اوس هم د مکتب په سوځولو تکبيرونه وايي
اوږده ټيکري
زړې پڼې
ګلاباتون په پايڅو
په سريې شکور دى په مړوند کې بنګړي
ځې لاروان دي خداى(ج) خبر په کومه
څه يې به بدو کې ورکړي د کنيزو په شان ژوند تيروي
څوک په ميړه باندې سګريټ بل کړي
د ښځو د حقوقو کتابونه لولي
ډيمو کراسي لکه يوزوړډاينسور
دوړې يې خيژي را روان دى څوک يې نه پيژني.
دوى ورته وخاندي او وويرېږي
چې دا عجيب ځناور
په دې هېواد کې هم هګۍ کړي هم بچي اچوي.

# ګیله

پرون ناروغ ومه نا مردې تاونه پوښتلم
تا ویلې آخ !
خدای دې ما مړه کړي
زه خبره نه وم
زه دې په سترګو کې د دروغو نښې ښې پېژنم
که ته خبره نه وې
پرون زیارت کې دې یوه چابله کړه
بیګاه تر نیمې شپې په پټه دعا چا کوله
سهار پلوکې او ښکې چا غوټه کړې
ما به خدای څنګه جوړ کړي ؟
د دروغجنو دعا نه قبلیږي.

15 لیندۍ 1384

د پښتو ژبې پیاوړي شاعر رحمت شاه سایل په دې ورستیو کې د کابل په نامه یو آزاد شعر خپور کړی دی، چې ددغه افغان شاعر د مینې او احساس یوه خوږه ترجماني ده. زما د زلمیتوب د خوښې دغه شاعر ته، دا څو کرښې د نوموړي د همدغه شعر، لپاره ډالۍ دي.

# سایله ستا هغه د خیال کابل

تالا کابل لیدلی نه دی، تا کابل ونه لید
سایله دا د افسانو ښار افسانه وګڼه
په تاریخونو کې یې ورکه شان کیسه وګڼه
دلته د وینو آیینه کې چې لمر سور ښکاریده
زما او ستا دملت ټپ چې لانا سور ښکاریده
هغه وخت موږه ستا غزلې لوستې
ستا په سندرو به مو خپل د مینې لیک پیل کړ
ستا په نظمونو به مو یو بل ته لاسونه ورکړá
سایله هغه وخت موږ ستا دعا ته لار څارله
چې ګوندې دا ولیکې:
((مادر ته ټوá عمر د خوبونو ښار ویلي دي
کله مې پېرزو شې په بمبونو کابل جانه))
خو ستا دعالا پوره شوې نه وه
چې ستا د مستو لیونو خوبونو
د ښاپېریو ښار بمونو رنګ کړ
تالا کابل لیدلی نه دی، تا کابل ونه لید

سایله ستا هغه غزلې او زما سندرې
نورې په ورک تاریخ کې ورکې شولې
نور څوک دالرو بر یو ځای نه ګنې
نورستا اجمل زما لایق نه شته دي
د پاچا خان ارمان اوبو وړی دی
د ((یو پښتون)) د غږ ضمیر را څخه
د کله دارو رنګینو وړی دی
سایله ته لا په روتۍ پسې او زه یمه په نان پسې ورک
یو هم په خپل کور کې ډوډۍ نه لرو
د اشنغر پیغلې له ډېره نازه
ماته په کور کې مسا پروا یې
چې خړ ځادر په پښور کې ګرځم
راته زلمي لا مهاجر وایي
سایله زه او ته د ورک تاریخ تکرار ته سوځو
سایله زه او ته تکرار یو د یعقوب او یوسف
سایله زه او ته تکرار یو د مریمې او عیسی د فراق
بس دغه ښار دې په خوبونو کې ودان وساته
دا دایروځلی په خیاá کې خپل مکان وساته.

مرغومی ۱۳۸۴ لمریز
کابل

# سفر

ته لکه د خوږ شګو کې سپینه اوړنه چینه
زه لکه د غره د کمره خواته راوتلی ګل
ته چې په ملا ماته شې نغمه د شرشرې راوړې
زه لکه د دنګ کوچي پګړۍ کې یو ټومبلی ګل

ته لکه د سپینې شیدو پېۍ پاڼه کې سره نښه
زه لکه سهار کې د بیباکه نسیم ښکلی موج
ته لکه د سیند په غاړه جوړه د ماشوم مانۍ
زه لکه ترتا نا رسیدلی بېرته تللی موج

ته کله د روغجنه شې ماشوم درغونه ووایې
زه دې اننګو کې د یو پټ شرم ګل ووینم
کله چې بانه جوړه کړې لویه کیسه پیل کړې
دروغو کې دې هم څه خوند ور تخیل ووینم

ته لکه د سپین قرآن د کرښو جنتي وږمه
زه لکه د عرش له منارونه د اذان آهنګ
هلته په جنت کې یوه سیمه پښتنه هم شته
ما او تا راوړي له هغه ځایه د عشق لونګ

خدای خبرچې موږ به دې دنیا ته څه او څـه ښکارو
څـه خبر چې موږ به په کوثر د عشق پــریـــو للي یو
زړځلې د مینې شهیدان شــولـــــه دنـــــیا ولاړو
بـــــیا لـــــکه آدم او حـــوا ځمـــکې ته راغلي یو

دواړه ماشومــــان یو دواړه ښکلي یو سپیڅلي یو
دواړه د جـــــنت له پاکې ځـمکې نــــه راغلي یو
کله ســـــره لـــوبــې کـــړو او کله سره جنګ وکړو
کـــــــله بیا د میندو پر زنګون باندې خوب وړي یو

دا خلـک ژړلـی نه شي سترګې یې خیـــــرنې دي
مـوږ لـکه رڼا د ایمان سترګو باندې نـــه ښکارو
زه او تـه د اوښکو پـه زمزم د زړه کـعـــــبه مـینـځو
بـس د خدای دوسـتانو او ولـیانو تـه رانـه ښـکارو

ای لـیونیه مـه ژاړه دا ځـمکه خــــــو پـه وینـــو ده
اوښـکو ته دې پاکـه د جنت خـــــاوره له کومه کړم
څه چې په آسمان کې دې له اوښکو ستوري وتراشم
وریـځې به زانـګو کـړمه او تـا بـه یې ماشومه کړم

مـه ژاړه راځـــه چـــې پــه چینه کې دې مـــخ و مینځم
ژوند هـمد ومره بس دی چـــې او بـــو کې زه او ته ښکارو
واړه عـاشقان بـــه موړه وڅښي او نـــشه بـــه شـــي
مـــوږ به د مینو په خـو بـــو نـــو کـې ویـــــد ه ښـــکارو

ځـــه چـــې د گل ځانگه کې یو رنگ شو بل ورېمه د گل
ښـکلي عـــاشقـــان به مو یو بل ته په سوغات ورکړي
راشـي ملـکه چـې د مـچـــیو پـــه مـــوږ و گـرځي
ولاړه شي تـرخو خلکو ته هـــم په میـــــنه شات ورکړي

ځـه چې لـه بـاران ســـره پـــــــر دوه مـینو وورو
یا د سپـیني غـاړې یـــا د تـــورو څڼو رنـگ واخلو
ځـه چې د بـوسـې د جـل و هلـو تـــنده مـــاتـه کـــړو
پـس لــــه ډیره وخته د خـوږو شـــونډو قلنگ واخلو

ځـه چې دواړه ورک شو له دې دو مـره ډېـــرو سترگونه
ټوله په تاریخ کې تیته شوې میـــنه ټـــولـــه کـــړو
رایـې وړو پـــه دومـــره ډېرینـــو زړو یـــې وویـشو
دا تـیاره دنـیا چـې زه او تـــه رڼـا پـه ســـولـــه کـړو

راشـه مـــا سـفـــر تـه مـــلا تـړلـې ده روان یـمه
بس یـوازې لاس راکـړه او ستـــرگـــې دواړه پټې کړه
زه بـه دې پـه شونډو لـــه بـوسـې نـــه بسم الله وکړم
تـه د اقـتدا پـه نـیت لـه مـــانـــه تـــاوې مټې کـړه

25 لیندۍ 1384 کابل

# نه ، ته مې هېره نه وې

## شعري ټولګه

# عبدالغفور لېوال

بسم الله الرحمن الرحيم

# كتاب پېژندنه

د كتاب نوم : نه، ته مې هېره نه وې

ويناوال : عبدالغفور لېوال

د پښتي طرح اوډيزان: محبوب(شريفي)

خپروندوى: ميوند خپرندويه ټولنه كابل

ټيلفون: ۰۷۰۰۲۹۵۲۱۴

كمپوز اوډيزاين: ذبيح الله( رامين)

چاپ كال:۱۳۸۴

چاپځاى: ميوند مطبعه

د انټرنيټ په مخ ترتيب او ډيزاين كوونكې : مړوند

# جادوګرې ته سرود

جادو ګرې څه دې وکړá
چې دې داسې لیونی کړم
دا په سترګو کې دې څه وو
چې له ځانه دې پردی کړم

جادوګرې څه دې وکړá
چې د چین ماچین پا چاشوم
ښاپیرۍ مې شوې کنیزې
چې ستا سترګو ته ګدا شوم

جادو ګرې څه دې وکړá
کفرو دین دې له ماواخیست
ماخودبین چې په کې ځان کوت
هانګین دې له ما واخیست

څه منتر دې په ما وکړ
چې کتاب نه مې زړه تور شو
ستاد مینې ستورې شمارم
بل حساب نه مې زړه تور شو

څه منتر دې په ما وکړ
تاته دومره در نږدې شوم
ستا په روح کې مې ځان ولید
ستا د نور ذرې ذرې شوم

جادوګرې ستا د سترګو
له پیریانو مې توبه ده
بسم الله د سپینو زرو
مې په غاړه کې پرته ده

جادوګرې څومره ښه یې
په سندرو دې بلد کړم
لکه شین طوطي غږیږم
په شکرو دې بلد کړم

جادو ګرې څومره ښه یې
تا له مینې نه خبر کړم
زه ساده د غرو سړی وم
تا په سمولارو سر کړم

ته پوهیږې جادوګرې
چې ته څومره ښایسته یې
له غزلو نه رنګینه
له سندرو نه پسته یې

ته پوهیږې جادوګرې
نور له ژونده جدا کیږم
له دې وروسته ستوري شماره
په آسمان کې پیدا کیږم

جادوګرې لاس دې را کړه
چې له دې جهانه ولاړ شو
له شکمنو سترګو پټ شو
د ګومان دنیا نه ولاړ شو

جادو ګرې لاس دې را کړه
چې د ستورو مېلمانه شو
له هغه ځایه چې راغلو
هلته بېرته ور ستانه شو

جادو ګرې لاس دې را کړه
زما له ژونده زړګی تور دی
یو آرام ځای ته مې بوځه
دې دنیا کې څومره شور دی

جادو ګرې لاس دې را کړه
زما ژوند دی ستا په لاس کې
لکه شین غمی د ګوتې
داسې بند دی ستا په لاس کې

جادوګرې لاس دی ښکلی
د تک سپين سوسن په شانې
رغوی راکړه چې يې ښکل کړم
دخواره وطن په شانې

جادوګرې جادو و کړه
دا ژوندون را څخه واخله
يا خو اور په دنيا بل کړه
خپل بيلتون را څخه واخله

جادو ګرې جادو وکړه
مادې غيرې ته ميلمه کړه
د ژوندون ورکه مانامې
بيرته روح را ستنه کړه

جادوګرې زړه مې واخله
په بدáکې ښکلا را کړه
ها چې زه ورپسې ګرځم
هغه ورکه مانا را کړه

جادو ګرې څومره ښه يې
لاس دې زما په سترګو کيښود
اوس جنت په سترګو وينم
دوزخي جهان مې پريښود

وږی- ۲- ۱۳۸۲

# دشها د ت کلیمه

ته مې یادېږې خو در تللی نه شم
ژوند مې په هرګام کې اغزي کړلي
پوهېږې؟
ژوند نه مې زړه دومره توردی
لکه دا ستا له تورو سترګو څخه
چې په رنجو ککړه او ښکه راشي
او ستا د تور کمیس ګریوان کې چیرې ځان پټ کړي
پوهېږې؟
ژوند ستا د بیلتون له غم نه لوی پیټی دی
خو تر هغو به یې پر سر ګرځوم
چې یوه ورځ یې ستا په مخ کې کوز کړم
مامې د مرګ وروستۍ سلګۍ یوازې تاته پرېښې
پرېږده ! د ژوند وروستۍ شیبه ښکلې شي
پرېږده، چې ستا په مخ کې
د شهادت دا کلیمه در سته کړم
خدای خو شاهد دی چې پر ما ګرانه یې.

# غم

ستارترنګیږی
ته مې مخ ته ناسته
خوزه له تا خپه یم
نغمه زما په زړه چړې را منډي
تابې وفا را ته بیګاه څه وویل؟؟
هیڅ مې له زړه نه وځي
او د ستار نغمه مې زړه کې
غم په شور راولي

# یو شیبه مینه

ستنه شوې ودې خندá
سردې زما پر تټر کېښود
زما دزړه درزادې وا وریدله
اې!
دې ماشوم بیا درته غوږ کې څه ویل؟
زه خو دده خبرې نه منمه
دی چې له ما خپه شي
په پټه، ټولې ګیلې تا ته کوي
پام کوه!
دالیونی هرڅه وایي
ګوره خپه چې نه شې.
ستنه شوې ودې خندá
زما تاوده نفس
داستا پر ښکلي وچویلی را پروت وربل دانه وانه کړ
ستا د بدن عطرو مې ذهن ته جنت وښوده
مګر رښتیا ووایه!
چې زما د مټو منځ کې
ولې د پانې په څېر وریږدیدې؟
ستنه شوې ودې خندá
چوپتیا خوره وه
او ما وتا دخپلې مینې لاره ونیوله

دواړه سوچونو کې ډوب
خدای خبر څومره ډېر مزá مووکړ
چې ستا د ښکلي غبږ خوږې زمزمې
د سکوت سپینه آیینه ماته کړه
پوه شوم ګیله دې وکړه ودې ویل:
چې ستا د ګوتو د شوخۍ له لاسه
زما غوږ والۍ خدای خبر چېرې رانه ولویدله
وګوره غوږ مې تش دی
زه بې ځوابه هک حیران پاتې شوم
خدایزده زما سترګو کې دې څه ولوستل
چې را ستنه شوې راته ودې خندá

# غزل

یــوځــوک دې پــه ســنـدرو او پــه ویــر یـــادوي
مـــریـــد دی پـــه حــلـقـه کـې نـوم د پـــیریـاد وي

د زلـــفو پـــه تـــړلـو مـــوځـوک کـــــله نــــازوي
زمـــوږ د جـــنـون نـــښــې پـــه زنــځــیـر یــاد وي

زمـــا د لـــمـدو ســـترګــو مـــاتـې ماتې آیــیـــنې
دویــــنـــو، اوښـــکو مــنـځ کـــې ستا تـصویر یادوي

چې زړونـــه رانه یوسي خپل ښایست ته شي مغرورې
چــې زړونـــه مـــو رامـــات کـــړي نـــو تـقـدیر یادوي

د یـــارد نـــامه تـــوري مــــې سـلګـیوکـې ماتـیـږي
دا ځـــوک پـــه دې دنـــیا کـــې مـــافـقـیـر یـــادوي

لیندی۱۳۸۲

# ستړی یمه ستړی

عشقه ناوخته راغلې
نړۍ د زرودسکو په ټولو لو بوخته
ستاملنګۍ ته د چاپام نه شته
په چا به رحم وکړې؟
دلته چې مینې ته ګناه وايولا
ته به دې اسپه چېرې ودروې؟
عشقه ناوخته راغلې
غر بنياد مونه ډک
سيند بنياد مونه ډک
چېرې خالي د جنون دښته نه شته
نو وايه عشقه ستا شليدلی ګريوان
خپل ببر سر
او زما دمينې اوښکې چېرې يوسم؟
عشقه نا وخته راغلې
زه نور زلمی نه يم چې مينه وکړم
لکه آدم د خپل هابيل او قابيل
د شخړو سيل کوم
عشقه نا وخته راغلې
د بې مهريو د ساده نسل له لاسه ژاړم
څوک مينه نه پېژني
خو په مينو پورې دومره خاندي
چې کله کله ور نه ځان هم هېرشي.
نو عشقه د اسې حاá کې
وايه چې تاڅنګه کړم
خپلې محبوبې ته مې څه ووايم؟
او له ژوندون څخه د استړی بدن چېرې خښ کړم؟

# ګران وحید عمر ته

زما اتڼ چي جانانه
زما اتڼ چي جانانه!
کله چې ځې یو ځل خو شاته ګوره
ښايي کوم ځوک دې هر قدم سره د اوښکو ځاځکي و بهوي
زما اتڼ چي جانانه
ته چې د ډوáله هر یو ګړز سره لاسونه تاو کړې
زما په زړه کې پښتنه وینه غور ځنګ وکړي
ته چې ځپلیو نه خرپا پورته کړې
زما په سرکې د ځوانۍ ولولې شرنګ وکړي
د اتڼ چیانو شاز لمیه میره!
هره شیبه مې ستا خندا یادیږي
چې مرور شې بیرته وګرځیږي
زما دې هغه ښکلې ادا یادیږي
زما اتڼ چې جانانه!
کله چې ځې یو ځل خوشاته ګوره
ښايي یو ورځ دې دا شاعر ملګری
په زړه درو وریږي
ښایې یوورځ د دې شاعر ملګري غږوا ورې چې:
((یو ځلې بیا په دې لار راشه
په پخوانو پلونو دې پریوتل ګرونه.))

# بدمرغي

پام کوه ونه ژاړې
اوښکې دې مه بهوه
اوښکې دې پټې خپلو سترګو کې خوندي وساته
دلته ژړا ته هم ګناه وايي او شک پرې کوي
که درنجو لیکې دې راغلې په سپین مخ
نو ټوá به وپوهیږي
چې تا د مینې په خاطر ژړلي
پام کوه ونه ژاړې
موږ دنړۍ له بد مرغانو څخه هغه دوه یو
چې آن ژړلی نه شو
پوهیږې!
هغه ورځ چې تا وژړá
زه څومره وسوځیدم؟
ځکه چې ټوله دنیا وپوهیده
چې موږه دواړه سره مینه لرو.
له دې نه لویه بد مرغي چېرې ده؟
چې ژړا جرم وي
او مینه وي د ټولو ګناهونو ابۍ
له دې نه لویه بد مرغي چېرې ده؟
چې څوک د خپلې معشوقې په اوښکو
وشرمیږي
او خپلې اوښکې د خپل زړه په وینو و مینځې
له ویرې څخه؟

۵ مرغو مې ۱۳۸۲

# زه مساپریم خو غریبه ته یې

((خپلې ګیلې به دیوالو ته وکړم
ځکه چې ته خو ورته غوږ نه نیسې ....))
آه یاره دادې لیک کې څه لیکلي؟
مساپر زه یم خو غریبه ته شوې
بېګاه مې ستا د ناچارۍ ګیلې ته ډیر وژړلá
له اوو سیندونو او اووغرونو لرې
زما د زړه په هر یو غږ کې ته یې
ستا چې په زړه کې ګیله وګرځېږي
زه یې همدلته اورم
ګرانې زه اوس هم ستا په زړه کې اوسم
او هر نفس سره دې ساه و باسم
خپلې ګیلې دې خپل زړګي ته کوه
پوهېږې؟
دلته هم آسمان شین دی
او د لمرښکلي طلايي بګۍ دورځې پرلارځي او راځي
مګر پر زمکه نه اشنا سیوری شته
نه تورې زلفې نه لونګۍ نه څادر
نه د زړو څپلیو خرپ نه د ټیکریو ورېمې
نه ستا د ښکلي رغوي عطر چې زما ډیر خوښېده
زما اوږه تشه ده
ستا تورې زلفې پرې خورې ورې څپې نه وهي
زما غاړه ستا د نفسونو له ګرمۍ نه لیرې

او وچې شونډې مې موسکانه لري
نه کابل جان شته نه يې د نګ اسما يي
نه يې ځيږه هوا چې ستا د غيږې عطر لري
دلته د هسکو ښيښه يي ماڼيو جسم کې
اروا وې نشته
زه مسا پريم او غريبه ته يې
خو اشنا زه در ځخه ليرې نه يم
زه خو اوس هم لاستا په زړه کې اوسم
له ديوالونو سره مه غږيږه
خپلې ګيلې دې په خپل زړه کې ها شاعر ته وکړه
چې که دنيا ځخه هم ولاړشي
ستا له زړه نه، نه ځي.

۱۲-۲-۲۰۰۴
دټوسن ښار اريزونا

# د هستۍ الفبې

هو !
زه پوهيږم چې يادېږمه دې
راته ليکلي دې دي:
چې د شعرونو کتابونه مې په اوښکو مينځې
زما د زړه دوينو کرښې دې په اوښکو لمد وې، وچوې
او زما يادونه دې د زړه شپو کې ځراغ بلوي
هو ! زه پوهيږم چې يادېږمه دې
زه ستا په پاکه او سپيځلې مينه ښه پوهېږم
خو راشه ما وګوره !
چې ستا تصوير ته په لمدو سترګو خبرې کوم
زه دلته ټولو ته بې سده ليونی ښکارېږم
نور د ځوانۍ خوبونه ويني، خپلو سترګو ته اوبه ورکوي
د سپينو نجونو د بدن په ليدو آه وباسي.
خو زه د خپلې کوټې ور وتړم
او په شيبو شيبو له ځان سره يوازې او سم
ستا تصويرونه او ليکونه ګورم
يوازې ستا دليک خبرونه شعرونه ليکم
او س خو زه نه
زما شاعره ته يې
ته زما زړ کې ناسته

زماله خولې ښخه شعرونه وايې
اوس چې ته نه يې زه شاعر هم نه يم
نو اوس منې چې زه په تا ژوندی يم؟
نو اوس منې چې د هستۍ الف و بې
ستا د نامه له يو الف ښخه پيليږي او په بل ختميږي؟

۱۷- ۲ - ۲۰۰۴

ټوسن- اريزونا

# غزل

بیگاه دوه پرښتې وې مقررې دلته راغلې
د استا له ښکلو سترګو نه کوترې دلته راغلې

قسم جانانه ټوله ورځ مې زړه کې ګرځیدلې
چې نیمه شپه دې وکړلې وزرې دلته راغلې

په شنو سترګو یې ستا د تورو سترګو غلا کوله
یو دوه د پرنګیو جادو ګرې دلته راغلې

د عشق له پیغمبر سره د سرو کفارو جنګ و
بیګاه د ملایکو څو لښکرې دلته راغلې

سلګۍ سلګۍ اسرې لکه افغانې مهاجرې
د استا د سترګو جنګ نه مرورې دلته راغلې

پرون دې دلېواá د غزلونو کتاب لوستی
خبرې دې خوږې لکه سندرې دلته راغلې

۱۷مارچ۲۰۰۴توسن اریزونا

# غزل

شب پرست یم خپل یزدان سره مې شپه ده
ستا له زلفو او باران سره مې شپه ده

مجلسی یاران مې ستوري او سپوږمۍ دي
مسافر یم شنه آسمان سره مې شپه ده

ستا د سترګو څه نیکمرغه اسارت دی
چې له تیر او له کمان سره مې شپه ده

له ګونګرو یې د لنډ یو شرنګا اورم
ستا له ټیک او له پیزوان سره مې شپه ده

چې ویده شمه بس جنګ په خوب کې وینم
ستا د حسن له افغان سره مې شپه ده

۱۹ اپریل ۲۰۰۴ټوسن

# وعده

نه!
ته مې هېره نه وې
ته مې په ياد وې، ستا وعده مې هم په زړه باندې وه
زما يا دونه لا، له تاسره وو
خوخدای(ج) خبر چې ولې درنه غلم ؟
باران په شړک وريده
ما د باران د ټولو څاڅکو په شمېر ته ياده کړې
تا راته ويلي وو چې زه به ځان په واينو لوند کړم
کله چې ته راځې نو زه به په شرابو کې لمده خيشته يم
هو ! دا مې هرڅه ياد وو
ستا د وعدې هره شيبه مې په خاطر کې شنه وه
زه پوهيدم هغه ډيوې چې بلې کړې وې تا
اوس خلاصيدې او وار په وار مړې کيدې
خو خدای(ج) خبر چې ولې درنه غلم
ته مې په ياد وې، ته مې نه وې هيره
او په سرو واينو کې لوند خيشت بدن دې
زما سترګو ته نيغ ولاړو
زه پوهېدم چې ته به راشې
زما د خونې وربه وټکوې
زه پوهېدم چې له ژړانه به دې سرې سترګې را واړوې
ګيله به وکړې:
چې شراب خلاص شوá، ډيوې مړې شوې

ولې را نه غلې ته؟
زه پوهېدم چې زه به چوپ ولاړیم
ځکه زه نه پوهېږم
چې ولې درنه غلم
زما په لاس کې به یو سپین کاغذ وي
ما غوښتل شعر ولیکم
نه شعرمې نه لیکه همداسې ناست وم
یوازې سپینه پاڼه
زه پوهیدم چې ته به پاڼه زما له لاسه واخلې
په دې ګومان چې ما به نوي څه لیکلي وي پرې
خو پاڼه سپینه ده یوازې یې په سرکې دي یوڅو توري:
(غواړم وطن ته ولاړشم.)

۱ - مې - ۲۰۰۴ ټوسن - امریکا

# یا هو

بــیــګاه دلــته راغــلــې وه ډیــوې ســــره نــجــلۍ
آســـمــان نــه پــریــوتــلــې وه ډیــوې سـره نـجـلۍ

د ســپــیــن کـمـیـس ګـلان یې د مـظـلـومو ویـنو څاڅکي
مــلــنګــه وه، ســپــیــڅــلــې وه ډیــوې سـره نـجلۍ

پــه کــلـي کــې نــن بــاد د اسـرافـیـل شـپـیلۍ وهـله
بــیــګاه کــوم چــا ویــشــتــلــې وه ډیــوې سـره نجلۍ

یــو روڼ ســتــورى را پـریـوت، خـلـکو ولـیده لـه ورایـه
هـمـد غــلــته لـویـدلـې وه ډیــوې ســـره نـــجـــلۍ

د کلـــي مـــلایــانــو تــر سبــا هـــو، الاهـــو کـــــــړ
د قـــدر شـــپــه بــللــې وه ډیـــوې ســــره نــــجــلــۍ

یـــو څـــولــیــونــي ولاړو چــې د زړونــو نــذر ورکړو
ارمـــــان چــې نــوره تــللــې وه ډیــوې ســره نجلۍ

۴ مې ۲۰۰۴ توسن اریزونا

# يوازې

هره شيبه د ژوند څېره بدلېږي
هره شيبه د مرګ په لوري يو بل ګام اخلم
لکه د مني پاڼه رېږدمه او لېږدمه د ژمي په لور
او باد د عمر سپينه واوره زما پرسررا شيندي
يوازېتوب
يوازېتوب مې خوښ دی
چې په لمده کبله، بربنډې پښې
يو څو ګامونه واخلم
او هر څه هېر کړم دا بد لپاره
مامې له ژوند څخه يوازې بد بيني زده کړې
هرڅوک يو څوک دی ځانته
هغه چې زما په شانې نه دی هغه زه نه يمه
هرڅوک چې زه نه يم دوزخ دی زما
زه چې يوازې پيدا شوی يم يوازې اوسم
دادی:
د مرګ په خوا يوازې درومم.

۱۱-2004-جون توسن اريزونا

# هو دلته مينه نه شته

دلته هرڅه شته دي خو مينه نه شته
دلته د مور د لاس توده ډوډۍ غلمينه نه شته
دلته رګونو کې شراب ګرځي او زړونه په هوس
دربیږي
دلته زما او ستا په شان وجود کې وينه نه شته
دلته رنګونه دي، غوغا ده او شوخي ډېره ده
دلته سپيڅلي او ساده ښکلا زما د کلي
هغه په سترګو توره او په مخ سپينه نه شته
زه دلته دوی ته خپل هرڅه يادوم
دوی را ته خاندي وايي
هو هلته هرڅه دي او دلته نه شته
وګوره دلته سپينه سوله ده او جنګ هم نه شته
دلته غلا هم نه شته تالان هم نه شته
دلته يوازې وداني شته و رانوá چېرې دي
هو دلته مينه نه شته
خو په لاسو د انسان
د انسان مړينه نه شته

واشنګټن DC 2004 /29 اګست

# د سپوږمۍ په ارمان

پا یخې مې بډ وهلې
بیل مې په پوله خښ کړ
او د لیښتي رنهو اوبو کې مې لاسونه پریولل
د جوارو لوی پټي ته ځیرشوم چې مې ته ولیدې
په شنه ګیډۍ کمیس دې سپین ګلا باتون مات کړي
اود پاولیو شرنګهار دې د چنچنهو له نغمو سره ګډ
څومره ښایسته وې بلا
زړه مې له ډېرې خوشالۍ الوځي
سږکاá مې ځمکه له ګروۍ خلاصیږي
او له روژې څخه به مخکې ستا ډولۍ راوړم
* * *

کابل له سپینو واورو لاندې پټ دی
باغ بالا کې سبرونې وچې شوي سږکاá
ستا نفسونه ډېر تاوده ښکاریږي
زما تاوده لاس کې دې سپین لاس خولې دی
بیګاه دې بیا ژړلي؟
په ټیلیفون کې دې له غږه پوه شوم
اوس ستا څېره کې د سترپا نښې له ورایه وینم
اوس زه اوته سره ډېرنه شو لیدای
ژوند زما اوستا ترمنځ دیواá جوړ کړی
ژوند سرګردانه دی د ښار کوڅو کې
ښار لکه تورښامار زموږ مینې ته اور را شیندي
* * *

د خپل کوچني کمپيوټر غبرګ راوېښ کړم
دا د شيطان صندوقچه هره ورځ همدا سې کوي
ستا برېښنا ليک مې ولوست
کړکۍ ته ودريدم
خو ته منې دلته آسمان نه ښکاري
دلته په مياشتو څوک سپوږمۍ نه ويني
دلته سپوږمۍ چا ته سلام نه وايي
دلته نيويارک کې يې آسمان غلا کړی
زه سپوږمۍ نه شم ليدای
خو ستا ليکلې ټيکۍ لا هم زما پرشونډو ناڅي
(شين آسمان ذرې ذرې د سرو زرو يې تنابونه
سپوږمۍ د بام په سر په يار وايه سلامونه)

۲۰۰۴ سپتمبر نيويارک

# اروا او ځنګل

ما ځنګل و آزمو یېه
ما له ځنګله سره نفس و یو ست او ځان مې شین کړ
او زما وجود د ځنګله شنه بدن کې و غځیده
ماله ځنګله سره ځو شپې تیرې کړې
او د کوچني سیند له سند رو سره و بهیدم
ما په ځنګله کې ځان پخپله ورک کړ
ځنګل زموږ په شان دی:
شاړ
مهربانه
او وحشي خو ښکلی
ځنګل زموږ په شان نه
زموږ د اروا په شان دی
هلته هم پړانګ او سیږي
او هم د سترګې هوسۍ ښکلي بچي
ځنګل کې مار له ونې ځان راتاو کړي
او د مرغیو ځاله ټوله له بچو تشه کړي
ځنګل زموږه د اروا په شان دی
دلته لیوه او غزاڅ دواړه اوسي
ځنګل له ځان څخه دویرې په شان
له ګڼو بوټو لاندې تورې بلاګانې او شیشکې ناځي
شپه په ځنګله کې ستوري یو یو ښکاري
او سپوږمۍ ځاځکې ځاځکې ځاځي
له شنو ګڼو ځانګو

دلته د باد نغمه له پاڼو سره لوبې کوي
لکه د د نګې نڅاګرې د پایزیب شرنګهار
خو د ځنګله سهار د ښکلې معشوقې د سپینې غاړې په څېر
همدومره سپین
همدومره روڼ
همدومره پوست دی منې؟
چې کله ویښ شې بیا یې ښکل کړې نو
الله اکبر
یوه نری لار د ځنګله د بوټو منځ کې تللې
د وچو پاڼو پرې غالۍ خوره ده
دا لار زموږ د ژوند تر پایه اوږده
چېرته یو ورک لاروی نه شته چې سلام دې واخلي
او وچې پاڼې به ما تیږې ستا تر پوندو لاندې
ځنګل زموږ د یارانې په څېر دی
ځنګل زما په څېر یاغي
خو ستا په څېر ښکلی دی
ما ځنګل و آزمو یېه
اوته زما د روح ځنګل ته راغلې
له هم هغه ازله
کله چې ته خپه شې
نو ځنګل اور واخلي اوونې سوځي
کله چې ته وخاندې
پر ځنګله شرکنده باران وریږي

- سپتمبر ۲۰۰۴ مریلند - کوزاډیلفې ځنګل

# غزل

ستايـوې جـلـوې تـه لـه ګناه سترې بدن شو اور
وتراشه دا روح مې پرېږده خیر دې کـه مې تن شو اور

ځـان نـه يـم راغـلى او سفر مې تـر خـپل ځـانـه دى
سـتـا د مـخ رڼـا تـه ددې لارې لـوغـړن شـو اور

مـړه خـاوره ويـده وه خـوچـې تـاورته تش وکتل
وينبـه شوه خوپوه نه شوه چې ځنګه پرې وطن شواور

ګل پـه خـنـد يـدوکـې سـتـا دحسـن نـبنـه راوړلـه
مـاتـه مـې پـه ځـان کـې دغـه خـيـرې پيرهن شو اور

تـانـه يـې رڼـا زده کـړه او مـانـه تـا ويـدá او سـوز
ځـارشـه زمـوږ لـه مينې نـه چې دومره برخمن شو اور

دومـره مـې در واخـلـه چې خيـرن خلك مې نه ويني
مـاتـه خـو پـه دې دنـيا کـې دغـه شـان بـودن شو اور

۳۰ وږی1383مريلند کالج پارک

علامه رشاد ته چې د بیا لیدو ارمان یې زما پر مسا پر زړګي پاتې شو

# خپل استاد ته !

او ستا دلمر په شان وجود هم پریوت

هېڅ مې باور نه راځي
ها مازیګر به مې همیش په زړه وي
چې پر سبا یې زما سفر پیلېده
زه ستا د کور په لویه خونه کې ناست
او ستا د تود غېږ له ورېمو سره جنت ته تلمه
تاراته وویل چې:

پام چې وطن هېر نه کړې
مګر استاده ! ته چې ولاړې
دا وطن او مورېه چاته پرېږدې؟

مګر دا ژوبله او یتیمه پښتو چا ته پرېږدې؟

یوه ورځ تا را ته ویلي وو چې:
(فخر شاګرد هنرمند به استاد رسد)
مګر استاده !
اوس حیران یم چې زمونږ فخر به چاته رسي؟

موږه بې فخره شو
بې سره شو
بې لمره شو بس ته چې ولاړې
اې د پښتون مذهب رهبره وايه
زموږ د پوهې پيغمبره وايه
که ستا د تللو نيت و

ولې دې موږ ته دومره مينه راکړه
موږ خو ويده وو دابد په شپو کې
ولې دې مړو رګو کې وينه راکړه
دا ويښ زلميان به اوس په کوم لوري ځي ؟
ته خو يې مشر د دستار سړی وې
دا افغانان به اوس په کوم لوري ځي ؟
استاده ! اوس به دا نيمګړې نسخې چا ته لولم
دا - دخوشاá فرهنګ - به څوک وليکي
دا د - اټک - لانجه به څوک وڅيړي
دستر پښتون نيکه به څوک پېژني
زما د تاريخ دهسک له لمر سره خو ته اشنا وې
خو
ستا دلمر په شان وجود هم پريوت
هېڅ مې باور نه راځي
نه !
زه دا منلی نه شم
لا دېر څه پاتې دي چې ته يې وکړې
يوازې ته
يوازې ته

يوازې ...

ددسمبر اوله ۲۰۰۴ واشنګټن دي سي

# تصوير

ستا رالېږلی تصوير
هغه په تور ټيکري کې ښکلی تصوير
هو !
همدا اوس هم زما په لاس کې دی او ګورم ورته
ستا ښکلې سترګې خو تصوير کې هم خبرې کوي
ليونۍ !
سترګو کې دې څه پټ کړي؟
چې زما ټوά عمر يې وخوړ
خو تفسير مې نه کړې.

۲۱نومبر ۲۰۰۴ مريلند

# غزل

جانانه د خوږو سترګو تصویر سره دې ژاړم
د خوب او خیاá له تور او سپین تعبیر سره دې ژاړم

دا تاراته ویلي و چې بند کې به مې ساتې
ته نه یې د یادونو له زنځیر سره دې ژاړم

ستا اوښکه مې تاویزکړه ګرځومه یې په غاړه
له پیر سره دې ژاړم له فقیر سره دې ژاړم

بس تاکې چې اوسیږم لیونی یمه وطنه
خندا سره دې خاندم او له ویر سره دې ژاړم

برخلیک دې دی چې خپله مینه خښه کړې په خپله
لیواله بد قسمته له تقدیر سره دې ژاړم

مریلند - امریکا

# غزل

تو به مې کړې وه چې ماته شـــــوه تـــوبه مې وکړه
شيخ او ساقي سره همدومـــــره ګـــوزاره مې وکړه

ته به مې خوب غوندې په ياد کې ساتې ښکلې ياره
يو مساپر وم، دلتـــــــه راغــــــلم يوه شپه مې وکړه

افغانستان غوندې زخمي زړګی مـــــې راوړ درته
جا نانه راشه، شونډې راوړه څه چاره مــــــې وکړه

دې ته دې هم لويه ګناه وويــــــل زمـــــا قــاتـله
چې ځنکدن کې دوطن خواته سجده مـــــې وکـړه

زه ستړی نه وم خو پښتو مې مخ ته ودريــــــــده
توره مې ماته کړه دښمن سره جرګه مې وکــــــړه

ليندۍ۲۵- ۱۳۸۳ واشنګټن

# زلزله

دهند په سمندرکې دڅونامي زلزلې ۱۵۵ زره کسان ووژڼ

او زمکه ریږدي
څپې الوځي
دخلکو لو دی
لکه قیامت، موراو زوی نه پیژني
دخدای (ج ) پر زمکه څه بلا پریوتې
چې خلک یو دبل دغوښو بوی نه پوزې نیسي
طبیعت په لوبه بوخت دی
خلکو کبان نیوڼ خو نه وو خبر
چې دطبیعت په یوه لوبه کې به
کبان په دوی ماړه شي
کله چې زمکه دالله (ج ) دبندګانو تر پښو لاندې راوڅرخېده
لویانو چیغې کړې:
یارب
یا بګوان
یا عیسی ....بودا .... موسی راورسیږئ ...
خوماشومان او لیوني پوه نه شوڼ
چې چا ته پاس وګوري
دوی ډېر نېکمرغه وو چې نه پوهېدڼ
ځکه اوڼ یې زلزلې ته کټ کټ وخندڼ او وروسته مړه شوڼ

اسمان لا شین و
چا څه ونه ویل
د ځپو غږ کې چیغې ډوبې شوې

خنداوې پراوبولاهوشوې.
ښځې تر اوسه لا ځپو ته ګوري
خو شپه تیاره وې داوبو پر سر د هېڅ ماهیګیر
د کوچنۍ بېړۍ څراغ نه ښکاري
په جوماتونو کې اذان
په مندرونو کې زنګونه نشته
د کلیساوو صلیبونه مات دي
خلک دلویو پانګه والو د خیرات په ډوډۍ
یو بل له ستوني نیسي
او ماشومان
لاهم په ختېو کې دمړو میندو له تیو څخه وینې روي

* * *

پر ځمکه خلک ډیر دي
څوک یې په جنګ څوک یې په اور کې سوځي
څوک زلزله کې تر اوبو او خاورو لا ندې ورک شي
او یو ځل بیا بشر په دې پوهېږي
چې مرګ د کونډو یتیمانو غم وي
نه د هغو چې مړه شوá
د مرګ غمیزه لا ژوندۍ ده
د هندي او بنګالي ښځو له اوښکو سره لوبې کوي

خو ها چې مړه شوá په دې نه پوهيږي.
* * *
يو ليونی د ونې ښاخ کې ناست و
ونه ولاړه وه د ځنګو منځ کې
او ليونی لکه مرغه په کې ژوندی پاتې و
ليوني وژړá او ويې خندá
او بيا يې داسې وويل:
په دې دنيا کې به لا اوس هم چېرته جنګ روان وي
او ځيني خلک به د ځينو خلکو وينې غواړي
دا دی طبيعت ورسره مرسته وکړه
طبيعت ډېر ووژá
نو اوس کېدای شي
جګړه ماران ماړه وي
او جګړه ودريږي....
ليوني وژړá او ويې خندá
ونه ولا ړه وه
او دی لکه مرغه په کې ژوندی پا تې و.

۲۰۰۵ جنوري
انديانا-متحده ايالات

# بنده

شيخ وايي ښه کوه او بد مه کوه

خو شيطان دا نه مني وايي:

بد کوه او ښه مه کوه

ما ته خو د واړه په غلطه ښکاري

آيا دنيا کې بس همدغه ښه او بد دي

بل څه نشته مګر؟

زه نه د شيخ نه د شيطان منمه

د خدای بنده یم بس د خدای منم

او مينه کوم

جنوری ۲- ۲۰۰۵
اندیانا- متحده ایالات

# نه پو هیږم

دنیا یو بل توپان په سر اخیستې

بیا د دیوانو په سرونو کې چینجي ښوریږي

او بشریت په خپله سپینه تنده لاهم د جګړې داغ لري

د انسانیت د پیدا ینبت له ورځې

زموږ تاریخ د د وو سترو ګناهونو په دوزخ کې سوځي

یو (غلامي) او بل (جګړه) او وژá

خدای ج د انسان د بد مرغیو طوق د دغو شیطانانو

په لاسو کې ایښی

د غلامۍ شیطان د عدá بوړبو کۍ کې مړشو

خو (جګړه )

آخ خدای ج دې پرې مور بوره کړي

لاهم د ستر بابا آدم د اولادې شرم دی

دنیا یو بل توپان په سر اخیستې

قیامت به راشي خو حیران یم چې زموږ غاړې به

د جګړه مارو تر ګناه لاندې کړې تر خدایه څنګه ورشي؟!!

مریلند - امریکا

# غزل

جانانه څوک چېرې هم داسې نــــاروانـــه کــوي
چې زړه کې ناست وي خو پروا د زړه وا لانه کــوي

دومره ډېر فرق دی ستا د سترګواو د خلکو تـــرمنځ
خبرې تهá کوي خو هیڅ څوک یې ادا نـــــه کــــوي

چې ته را ونه ګورې روح به مې ځـــــان څه ووینې
چې تصویر نه وی آیـــینه چـــا تـــه خندا نه کوي

اخر په زموږ زړونه د خدای (ج) حسن په خوب و وینې
دغه میـــن مـــــا شو مـــان هیڅکله ګناه نه کوي

وایي مـــرګ سخت دی روح له تنه جدا کیږي مګر
ما دوطن بـــــیلــــتون لیدلی هیڅ پروانه کوي

۲۸- وری ۱۳۸۴ واشنګټن دی سی امریکه

# تصويرونه

که

هندارو تصويرونه ساتلای

موږ به خپل اووم نيکه هم لېدلی وای

او اوس به ټوáپوهېدو

چی د دارا او سکندر آيينې څه ډوáوې

او د جمشيد په جام کې څه ښکارېدá

يوازې

که هندارو تصويرونه ساتلای

نور به بې روحه تاريخ

داسې بې ژبې او مړژواندی نه وای

موږ به آدم ته د حوا لومړۍ موسکا پېژنده

او په بېړۍ کې به له نوح سره يوځای ګرځېدو

ما به آتن کی له سوکرات څخه پوښتلي وای چې

تر تا دوه نيم زره کلونه وروسته

ولې لا هم په- عدالت- پسی دا ورک بشر همداسې ورک دی؟

اوله موسی نه به مې غوښتي وای چې

ما هم له ځانه سره طور ته بوځي

بس که یوازې

تصویرونه په هندارو کې خوندي پاتې وای

مور به لیلا ته وای کتلي د مجنون په سترګو

او په کعبه کې به مو

د اسماعیل د قربانۍ نښې له ورایه لیدې

زه به ورتلم اکاډیموس ته چې په خپله ژبه

له اپلاتون سره خبرې وکړم

زماله هغه سره حساب پاتې دی:

ستا - ایتوپیا - چېرې ده؟

او انسانان به وژá کیږي لا تر کله دهغې لپاره؟

ستا د خیالي ډیموکراسي ریښتیاده چېری پته؟

مور خویې اوس هم

د دروغو د لمبو تر شاتور سیوري وینو

له ارستو سره مې نه ده جوړه

ځکه چی لا هم داخلاقو او ایمان په توپیر نه پوهیږي

خو

که هندارو تصویرونه ساتلای

ما به له خپل نیکه نه غوښتي ووچې

زما مغرور پلار ته وصیت ولیکي:

چی خپل شاعر زوی د ژوندون په لومړۍ ورځ ووژني

بودا لا اوس هم ما په خوب کې ویني

هو ! زه پوهیږم چې له ما خپه دی

ځکه زه ژوند ته د هغه په سترګو نه ګورمه

ژوند کله ښکلی شي زما دمعشوقې دښکلو سترګو په څیر

خو بیا هم ما ته هیڅ ارزښت نه لري

بودا ویریږي چې خوبونه یې زماله وینو رنګ وانه خلي

بودا به نه ویریدای

اوزه به هم ژوندی وای

خو که هندارو کې تصویر پاتې وای

راشه چې زه درته یو راز ووایم

له سلوزروکلو ډیر تیر یږي

هیڅ څوک پرې نه پوهیږي

چې له هندارو څخه ولې تصويرونه تښتي؟

ماته مې اووم نيکه کيسه وکړله:

چې په هنداره کې شيطان وکتل

او بس همدغه شر ميدلي دهندارې حافظه ماته کړه

که درته ووايم خندا به در شي

که تصويرونه په هندارو کې خوندي پاتې وای

موږ به ځانونه دبيزو له نسله نه ګڼلای

۱۳۸۳لړم۲۷

په دې شعر کې وزن څو ځایه توپیر لري، خو دا د مانیزو برخو دبیلولو لپاره دیوه نوي میتود کا رونه ده، نه وزني تېروتنه.

# د افغانستا ن ورکې خزانې

ددوه زره پینځم کاá د اپریل په یوویشتم ما ښام د امریکې په پلا زمینه واشنګتن ښار کې د افغانی سفارت او نشنل جیوګرافیک سنټر په مټ د افغان لرغونپوه ښاغلي زمریالي طرزي د هڅو او په ټولیزه توګه د فغانستان د لرغونو آثارو په هکله د یوه فلم پرانیستنه وشوه، چې((د افغانستان ورکې خزانې)) نومیږي په دې فلم کې د بامیان د سترو بودا ګانو را پرځېدá و ښووá شوá خو تر ټنګه یې په سیمه کې ددرییم بودا چې په (ویده بودا) مشهور دی، د موندلو لپاره د ښاغلي طرزي هڅې او بریالیتوبونه هم د پام وړ وو. د فلم جوړونکي باور لري چې دا په نړۍ کې تر ټولو ستره مجسمه ده چې اوږدوالی یې د ایفل تر برجه هم ډیر دی. ښاغلي طرزي وویل، له ډیرو څېړنو او کیندنو وروسته مود دغه بودا د پښو یوه برخه وموندله، خو کله چې ډاډه شوم هغه دلته دی، نو کاریګروته مې وویل چې بیرته خاورې پرې وروا ړوي، چې بیا بل وخت په ډاډ او احتیاط سره کیندنې پرې وشي. د فلم بله په زړه پورې برخه د طلا تېپې دقیمتي خزانې په هلکه وه چې له نیکه مرغه تر اوسه دولسمشرۍ په مانۍ کې خوندي ده. دویده بودا را برسیره کېدá په نړیواله سطح یوه ستره فرهنګی پېښه ده، وړاندوینه کیږي چې ددغه بودا تاریخي ابهت او اهمیت به د مصر له اهرامونو سره برابر وي، یاد شوي فلم عاطفي جوړښت درلوده چې د لیدو پرمهاá یې پرځینو افغانانو بر سیره بهرنیانو هم خپلې اوښکې تم نه شوې کړای. ماله خپلو اوښکو سره څو کلیمې هم مل کړې چې دلته یې لولۍ:

# ورکه خزانه

بودا !
ویده شه
د تاریخ ترخرو ارونو خاورو لاندې آرام و غځېږه
لا ((اپه ګان)) د خپل نیکه څېره د غم د غبار شاته وینې
لا شغهار د غشیو خیژی لا ګوربت زخمي دی
او د ((لوی غر)) د ذهن ځالې له لمبو ډکې دي
لا پښتین نه شي او ریدلای ستا د سترې ډ برینی سینې ورک درزونه
لا تور شیطان د ((براهې)) ګردونه مینځې د ((سیندو)) پر اوبو
لا هم پر مورېږ لمر د تور د جاá له کوره خیژي
لا ستا د دوارو تند یسونو له سوغارو نه دودونه خیژي
بودا !
ویده شه
په آرام پریوځه
هو دا ریښتیا ده چې
بخدي کې یې د ((ساک)) د پا چا ښکلې لور بربنډه کړله
طلا غونډی، کی یې د سرو زرو له تاج ځخه هډو کي تش کړá
خو ته ویده شه
ته آرام پریوځه!
د بخدینی، شهزادګی، روح لا له ګانو سره په کور پاتې دی
لا له سیندو یا له آمو ځخه اوښتی نه دی
لا خو د ساک د لور د ګڼ کمیس پا ولي شرنګیږي
او لا د ستر نورستان ((لام)) په ((الینو)) مین دی

لاهم ددنګو پکتانیو د قمې زرین لاسوندي بریښي
نو ته ویده شه، ته آرام پریوځه!
د بخدینۍ پیغلې ښایست ته مې سلام دی بودا
ستا د خوبونو پریشانۍ ته مې هم پام دی بودا
زه لا د زرو کلو شاته بخدینۍ وینمه
چې اووه کنیزې پرې چاپیرې دي سینګاریې کوي
څوک یې باولۍ، څوک یې والۍ څوک یې پېزوان سموي
څوک یې په هسکه سینه ږدي د ((سات دیوا)) زرځېره
بودا ښایست ته یې حیران یم خو ویرېږمه پرې
چې څوک یې نن را نه هډونه له سیندو تیر نه کړي
یا خویې غله د لاجورد و له آمو تیرنه کړي
زه هم پوهېږم زړه مې ریږدي خو ویده شه بودا
ته د تاریخ تر خوارونو خاورو لاندې پټ شه
چې زه د خپلې بخدینۍ ښکلې ګانې و ساتم
بودا ویده شه
ته خوښه خبر یې
چې ستا د هډ هډ ماتوونکي څوک وو
تا خو د خپلو تندیسو نو پرځېدá ولېدá
چې له((ارک هنډ)) څخه ورها خوایې دیوان نشه کړá
نو ته ویده شه، په آرام پریوځه!
کله چې ما د ارشاک توره بیا په لاس ونیوه
او کانیڅکا مې ببرته راوست د باګرام مانۍ ته
کله چې لمر له پکتیا نا څخه راوخوت او سوریا وخندá
ګندهارا ته چې مرغۍ له پرښا پوره راغلې
چې آسمایي بیا د (ویشنو) د پلاز بیرغ پورته کړ
او روهیلیو د کوترو سپین خیلو نه په هوا پورته کړá

بیا به(ارجن) له بهار ته راشي
(کلیو پاترا) به دنیل غاړې څخه راوړي زر مصري آسونه
(آشیل) به راشي د (زییوس) پیغام به راوړي طلایي بګۍ کې
او سکندر به خپل زرین تاج ستا پښو ته کیږدي
زرتشت به راوړي د بخدي پیغلې ولور کې د کوبا ارغوان
او د روم پیغلې به ګاڅونو ته نڅیږي له لنډیو سره
اراکوزي زلمي به اچوي د څښو څپې مست اتڼ ته
او هیندوکۍ راښۍ به ناڅي د خیبر اتڼ ته
سمر قندي کوڅۍ به څرخي کاکړۍ غاړو ته
او هیندو کش به له پامیر سره پیالې کړنګوي
بیا به نو تا را ویښوو له اوږده خوبه بودا
بیا به دې باسو دتیارو له تور آشوبه بودا.

د دوه زره پینځم کاá د اپریل یوویشتمه
واشنګتن ښار-امریکا

# اپه ګان: د افغان لرغوني بڼه

اپه ګان: د افغان لرغوني بڼه
ګوربت: په میدان وردګ کې دیوه غره لرغونی نوم دی
لوی غر: د لوګر لرغونی نوم
سیندو: ننني اباسیند ، یونانیانو اندوس باله
بخدي: د بلخ زوړ نوم
ساک: ساکیان د افغانانو هغه لرغونی پښت و ، چې سلګونه کاله یې پر هېواد واکمني درلوده.
طلا غونډۍ: طلا تپه چې زرګونه لرغوني زرین آثار ورڅخه موندá شوي.
بخدینۍ: بلخي شهزادګۍ
لام: د نورستان په افسانو کې هغه پهلوان دی چې په
شهزادګۍ الینو مین و.
الینو( الینا ): د نورستاني افسانو اتله، د لام معشوقه او د افسانوي ښکلا خاونده، د الینګار( الینګهر) اوسنی نوم هم له همدې څخه اخیستل شوی او مانا یې د الینا مېنه یا کور دی
سات دیوا: دیوا په سانسکریت کې ځواکمن واکمن ته وایي چې د اوستا یي دورې ارباب الانواع به یې په دې القابونومل، سات دیواد ساتونکي ځواکمن په مانادہ، چې زرینې مجسمې به یې د شاهي کورنۍ له مړیو سره خښولې چې ګواکې د هغو ساتنه وکړي.
ارک هنډ: د اټک زوړ نوم.
ارشاک: آریایي اتل
کانیڅکا: کانیشکا نامتو افغاني واکمن
کوبا: د کابل زوړ نوم
پرښا پوره: د پېښور زوړ نوم

آسمايي: په کابل کې ددغه غره نوم له دوو ريښو (آسه) يانې نيکمرغي او(مايي) يانې مورڅخه جوړ شوی چې مانا يې د نيکمرغي مورده.

ويشنو: له هندي ارباب الانواعو څخه

ارجن: هندي اتل، د مهابهارت په اتم پرب(فصل) کې يې له خپل تربور کرن سره د جګړو کيسه راغلې.

کليو پاترا: نامتو مصرۍ ملکه (شاه مېرمن)

زييوس: د يوناني اساطيرو نامتو څېره

ګاڅونه: ګاتهونه يا ګيتهونه زاړه ءآريايي سرودونه چې د هېواد د لرغوني فرهنګ وياړمنه برخه ده.

اراکوزې(اوسنی کند هار) پکتيانا(اوسنۍ پکتيا) ګندهارا(اوسنی ننګرهار): دلرغونې افغاني مدنيت درې مهم منځي

(مرکزونه).

هيندوکښ: هيندوکښ اوسنی هندوکش.

# مکتبی

د بر کلي صایب زاده یم

یو مې آس یوه شړۍ
قصیده مې پخه کړې
ګرځومه کوزړۍ
ځوان مرید د ځرخي پیر یم
رنګ دې ورک شي کوډې نه کړم
کوډې باسم
بند بختونه خلا صومه
د مینو زړو ریبار یم
شکرانه مې یا ممیز دي یا توتان دي یا مرۍ
څوک د سماá راته خامک کړي
څوک راجوړه کړي خولۍ

د بر کلي صایب زاده یم

یو مې آس یوه شړۍ

نجونې ګردې رانه تاو وي
تاویزونه رانه غواړي
ملا تل راته په قار وي
سل کوپرونه راته وایي
خو پروا یې ډیره نه کړم

خدا یزده ولې
د کوز کلي په زلمیو باندې ګران یم

ما ته راز ددوی مالوم دی
یو د خان په لور مین دی
بل لېدلې د ملا صایب لمسی

د بر کلي صایب زاده یم

یو مې آس یوه شړی
د شنډ توت ډډې ته ناست یم
شنډو ښځو ته تاویز کړم
ما شومان له ځېله خلاص شي
ورته دم چې زه ممیز کړم
دبرات دمیاشتې سر دی
نن اوله پنجشنبه ده
یوه پیغله راته ناسته
زښته ډېره ښایسته ده
وایي داسې تاویز راکړه
چې مې پلار لړ بسلمان شي
میرات مړی ولور کم کړي
خورډ جانان مې مساپر دی
په دوبۍ کې مزدوري کړي
* * *
نیمه شپه چې شي رابره
په سندرو باندې سر شم
ټوá ماران مې په هوده دي

غرږوم ورته شپیلۍ

د بر کلي صایب زاده یم

یو مې آس یوه شړۍ
ژرنده ګړی مې ښه یار دی
ډیرې شپې سره یو ځای یو
ظالم ښه مست ربابي دی
دځوانۍ سندرې وایو
شپه چې ښه ډېره پخه شي
بیا نو بله کړو دوهۍ

د بر کلي صایب زاده یم

یو مې آس یوه شړۍ
ژرنده ګړی چې نن راغی
په خندا یې راته وویل:
صایب زاده کیسې ته غوږ شه
نن اوره مې دخان یووړá
کور یې ډک له مېلمنو و
څوک له ښاره وو راغلي
په انګرېې شور ماشور وو
یوه ښکلې مېلمنه وه
په ښایست وه ښاپیرۍ
کلیوالو غوندې نه وه
ښکاریدله مکتبۍ
شرمېدله پټ یې وویل:
صایب زاده یار ته دې وایه

پیر خانې ته دې سلام دی
یو تا ویز خو راته وکړه
چې جانان ته شم منظوره
شکرانه به پوره درکړم
خدای دې مکړه ادې بوره
مکتبۍ راته داوویل
بیا یې راکړدا کاغذ
ژرنده ګړي تو بې وکړې
ویل یې ورانه زمانه شوه
مکتبۍ نه وه بلا وه
په خندا ببرته ستنه شوه
په کاغذ کې وو لیکلي:
((په سندرو یم مینه
دنغمو یم لیونۍ
په یو چا مې زړه بایللی
غړوي ښکلې شپیلۍ
یو تاویز وربا ندې وکړه
چې ماګل کړي د پګړۍ

یو یې آس یوه شړۍ))

د برکلي صایب زاده دی

۱۳۸۳\۱۱ \۱۴
متحده ایالات- مریلند

# ا فغا نا ن

اوربدې لمنې
ګونځې پا يځې
د پوندو چاودې له پوټيوډ کې
او دڅپليو په ميخ ژوبلې تلې
د اوږد تاريخ کوڅو کې ځي او راځي
سبا د لوی او ډبرين ديواá تر شاپټه ده
نن ديوې مړې ډوډۍ لپاره لاس تڼا کې
پرون په وينو سره په اوښکو لمده
يوځل په چپ ولاړá په ښي لاس راغلل
د ښار په لويې څلور لارې کې په چيغو سر شوá
بل ځل له تورو سره را غلل
خپل بچي يې له چپه حلاá کړá
اوربدې چپنې
ګل سيب د سماá ترملا
قرصې رخچينې پر سر
لينګي د شولو په پټيو کې خوړين
ملا خيشاوه کې کړ و په
يوځل د بيل لاستی په لاس کې بيا قبضه د ټوپک
يالاس پر ټپ ايښی ياګوته پر ماشه نښتې
يوځل په ږيره ګنهکار بل ځل د سر په وينتو
يوځل ملا پسې و لاړ بل ځل په تيښته ترې خلاص
نيم په تقدير مين او نيم يې په پيريانو اخته
نيم يې په تمه د جنت او په دنيا باندې يې لاړې تو کړې

څه په ماييو پسې روان
څه يې د ما رکس د کتابونو چينجي
څه د سيد قطب د تاويزونو غاړه کې په غاړه
څه اسامه سره په سوړو کې پټ
څبرې ګريوان
ډډۍ لمن
وáوá لونګۍ په غاړه
د ارابو له ربړه جوړې مچنۍ په پښو
د اوښ وندنى پر اوږه مخ په ختيځ دي روان
بارېې اپيم دي يا د بنګو ميده شوې پتۍ
څه په (پريتي) مين او څه يې د ((تام کروز)) ليوني
نيم يې له ډېره تکبره زړې مور ته انګريزي غږيږي
څه يې لا اوس هم د مکتب په سوځولو تکبيرونه وايي
اوږده ټيکري
زړې پنې
ګلاباتون په پايڅو
په سريې شکور دی په مړوند کې بنګړي
ځي لاروان دي خدای(ج) خبر په کومه
څه يې به بدو کې ورکړې دکنيزو په شان ژوند تيروي
څوک په ميړه باندې سګريټ بل کړي
د ښځو د حقوقو کتابونه لولي
ډيمو کراسي لکه يوزوړډ اينسور
دوړې يې خيژي را روان دی څوک يې نه پيژني.
دوی ورته وخاندي او وويريږي
چې دا عجيب ځناور
په دې هېواد کې هم هګۍ کړي هم بچي اچوي.

# ګیله

پرون ناروغ ومه نا مردې تاونه پوښتلم
تا ويلې آخ !
خدای دې ما مړه کړي
زه خبره نه وم
زه دې په سترګو کې د دروغو نښې ښې پيژنم
که ته خبره نه وې
پرون زيارت کې ډيوه چا بله کړه
بيګاه تر نيمې شپې په پټه دعا چا کوله
سهار پلوکې او ښکې چا غوټه کړې
ما به خدای څنګه جوړ کړي ؟
د دروغجنو دعا نه قبليږي.

15 ليندۍ 1384

د پښتو ژبې پياوړي شاعر رحمت شاه سايل په دې ورستيو کې د کابل په نامه يو آزاد شعر خپور کړی دی، چې ددغه افغان شاعر د مينې او احساس يوه خوږه ترجماني ده. زما د زلميتوب د خوښې دغه شاعر ته، دا څو کرښې د نوموړي د همدغه شعر، لپاره ډالۍ دي.

# سايله ستا هغه د خيال کابل

تالا کابل ليدلی نه دی، تا کابل ونه ليد
سايله دا د افسانو ښار افسانه وګڼه
په تاريخونو کې يې ورکه شان کيسه وګڼه
دلته د وينو آيينه کې چې لمر سور ښکاريده
زما او ستا د ملت ټپ چې لا نا سور ښکاريده
هغه وخت موږه ستا غزلې لوستې
ستا په سندرو به مو خپل د مينې ليک پيل کړ
ستا په نظمونو به مو يو بل ته لاسونه ورکړá
سايله هغه وخت موږ ستا دعا ته لار څارله
چې ګوندې دا وليکې:
((ما درته ټوá عمر د خوبونو ښار ويلي دي
کله مې پېرزو شې په بمبونو کابل جانه))
خو ستا دعا لا پوره شوې نه وه
چې ستا د مستو ليونو خوبونو
د ښاپېريو ښار بمونو رنګ کړ
تالا کابل ليدلی نه دی، تا کابل ونه ليد

سایله ستا هغه غزلې او زما سندرې
نورې په ورک تاریخ کې ورکې شولې
نور څوک دالرو بر یو ځای نه ګڼي
نورستا اجمل زما لایق نه شته دي
د پاچا خان ارمان اوبو وړی دی
د ((یو پښتون)) د غرږ ضمیر را څخه
د کله دارو رنګینو وړی دی
سایله ته لا په روتهۍ پسې او زه یمه په نان پسې ورک
یو هم په خپل کور کې ډوډۍ نه لرو
د اشنغر پیغلې له ډېره نازه
ماته په کور کې مسا پروا یې
چې خړ څادر په پېښور کې ګرځم
راته زلمي لا مهاجر وایي
سایله زه او ته د ورک تاریخ تکرار ته سو ځو
سایله زه او ته تکرار یو د یعقوب او یوسف
سایله زه او ته تکرار یو د مریمې او عیسی د فراق
بس دغه ښار دې په خوبونو کې ودان وساته
دا دایرو څلی په خیاá کې خپل مکان وساته.

مرغومی ۱۳۸۴ لمریز
کابل

# سفر

ته لکه د خوږ شګو کې سپینه اورنه چینه
زه لکه دغره د کمره خواته راوتلی ګل
ته چې په ملا ماته شې نغمه د شرشرې راوړې
زه لکه د دنګ کوچي پګړۍ کې یو ټومبلی ګل

ته لکه د سپینې شیدو پۍ پانه کې سره ننبه
زه لکه سهارکې د بیباکه نسیم ښکلی موج
ته لکه د سیند په غاړه جوړه د ماشوم مانۍ
زه لکه ترتا نا رسیدلی بېرته تللی موج

ته کله دروغجنه شې ماشوم درغونه وواېې
زه دې اننګوکې د یوپټ شرم ګل ووینم
کله چې بانه جوړه کړې لویه کیسه پیل کړې
دروغوکې دې هم څه خوندور تخیل ووینم

ته لکه د سپین قرآن د کرښو جنتي وږمه
زه لکه د عرش له منارونه د اذان آهنګ
هلته په جنت کې یوه سیمه پښتنه هم شته
ما او تا راوړي له هغه ځایه د عشق لونګ

خدای خبرچې موږ به دې دنیا ته څه او څــه ښکارو
څــه خبر چې موږه په کوثر د عشق پـــریـــو للي یو
زرځلې د مینې شهیدان شــولــــه دنــــیا ولاړو
بــــیا لــــکه آدم او حـــوا ځمـــکې ته راغلي یو

دواړه ماشومــــان یو دواړه ښکلي یو سپیځلي یو
دواړه د جــــنت له پاکې ځـمکې نــــه راغلي یو
کله ســـره لـــوبــې کـــړو او کله سره جنګ وکړو
کـــــله بیا د میندو پر زنګون باندې خوب وړي یو

دا خلـک ژړلـی نه شي سترګې یې خیـــرنې دي
مـوږ لـکه رڼا د ایمان سترګو باندې نـــه ښکارو
زه او تـه د اوښکو پـه زمزم د زړه کـعـــبه مـینـځو
بـس د خدای دوسـتانو او ولـیانو تـه رانـه ښـکارو

ای لـیونۍ مـه ژاړه دا ځـمکه خــــو پـه وینـو ده
اوښـکو ته دې پاکـه د جنت خــــاوره له کومه کړم
څه چې په آسمان کې دې له اوښکو ستوري وتراشم
وریـځې به زانـګو کـړمه او تـا بـه یې ماشومه کړم

مه ژاړه راځه چې په چينه کې دې مخ ومينځم
ژوند همدومره بس دی چې او بوکې زه او ته ښکارو
واره عاشقان به موږه وڅښي او نشه به شي
موږ به د مينو په خوبونو کې ويده ښکارو

ځه چې د گل ځانگه کې يو رنگ شو بل وږمه د گل
ښکلي عاشقان به مو يو بل ته په سوغات ورکړي
راشي ملکه چې د مچيو په موږ وگرځي
ولاړه شي ترخو خلکو ته هم په مينه شات ورکړي

ځه چې له باران سره په دوه مينو وورو
يا د سپيني غاړې يا د تورو څڼو رنگ واخلو
ځه چې د بوسې د جلوهلو تنده ماته کړو
پس له ډيره وخته د خوږو شونډو قلنگ واخلو

ځه چې دواړه ورک شو له دې دومره ډېرو سترگو نه
ټوله په تاريخ کې تيته شوې مينه ټوله کړو
رايې وړو په دومره ډېرينو زړو يې وويشو
دا تياره دنيا چې زه او ته رڼا په سوله کړو

راشه ما سفر ته ملا تړلې ده روان يمه
بس يوازې لاس راکړه او سترگې دواړه پټې کړه
زه به دې په شونډو له بوسې نه بسم الله وکړم
ته د اقتدا په نيت له مانه تاوې مټې کړه

25 ليندۍ 1384 کابل